# مهدویات او دجالیات

## یو څو سوالونه اود هغے جوابونه



ډاکټر مفتي ثناءالله صاحب

فهرست

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**مهدويات او دجاليات**

**يوڅو سوالونه او دهغے مدلل جوابونه**

**سوال(۱):** په ټوله دنيا کښې په مهدوياتو او دجاليات باندې کار کونکو کښې کوم خلقو باندے اعتبار کيدے شي او کوم خلق بے اعتباره دي؟دے باره کښې ځمونږ څۀ منهج دے؟

جواب:په مهدويات او دجاليات باندے کار کونکي خلق په مختلفو طريقو سره کارکوي ۔ يو څومنهجونه دادي:

۱)څه ديندراه خلق ددين دخدمت په وجه صرف مهدويات اودجاليات سره تعلق لرونکي آحاديث بيانوي،خو هغوي دااحاديث دخپلې زمانې په حالاتو نه شي تطبيق کولې۔

۲)بعض آزاد خياله او بې دينه خلق په مهدويات او دجاليات باندے کار کوي خو دهغوي دکار مقصد صرف په مخالفت مبني وي۔

۳)څه مخلص او ديندراه خلق هم دمهدويات اودجاليات متعلق احاديث دموجوده زمانے سره سموي۔خو دهغوي کار صرف په تطبيق وي۔ د دے تطبيق مقصد د امت مسلمه څه قسمه اصلاح ،دعوتي ،سماجي يا مذهبي ،د اعلائے کلمۃ الله په څۀ قسمه کار کښې عملاً حصه اغستل مطلوب نه وي۔

۴)ددے په مقابله کے بعض نور خلق د کتاب الفتن او دقيامت د علاماتو داحاديثو تشريح کوي خو د هغوي تشريح د خپلے خوښے تطبيق او په خلقو کښې د لوړو تحقيقاتو مرتبه حاصلولو دپاره کوي۔ددے مقصد نه خو عملي ميدان وي او نه د اکابرو تطبيقات۔

۵)هم دغسې ځني کسان کتاب الفتن او اشراط الساعۀ لولي او وقتي حالاتو سره تطبيق کولو سره داکابرو منلے شوي اصولو پيروي کوي او په خپله داکابرو داطباع کوشش کوي.او دے تطبيق ته عملي جامه اچولو کوشش کوي . خو دهغوي دا عمل صرف سماجي ،معاشي ، معاشرتي او دعوتي يا داصلاح حده پورے مقيد وي. ددے نه مخکښې په ميدان کے قدم نه ګدي.

۲)هم دغسے د کتاب الفطن او اشراط الساعه والا کسانو هم کمي نشته چه په تطبيق کولو کښ نوي حالات،داوسني زمانے تحقيقات،وقتي ضرورتونه،قرآن او سنت په رڼا کښې د تطبيق دپاره اکابرو دطرف نه جوړ شوي اصول اود هغه اصولو په تناظر کښې د تشريح شوي احاديثو کے داکابرو ذکر کړے شوي نصوص موجوده حالاتوسره تطبيق کوي . په دے احاديثو کښې دا خلق صرف د جهاد د نه کولو طرف ته رابلي . خو نه خو دوي سره په کتاب الفتن اواشراط الساعه کښې سماجي ،معاشرتي،معاشي او اقتصادي وغيره امورو دپاره وسائل وي او نه په ميدان کښې ددوي سره موجود افراد وي.

۷)څه خلق کتاب الفتن او داشراط الساعه عام احاديث باندے بحث کوي خوامام مهدي او دجال سره باره کښې احاديث نه بيانوي ځکه چه معاشره داسے تحقيق کونوکو ته د قدر په سترګه نه ګوري په دے وجه دا ورونه امام مهدي او دجال سره متعلق احاديث بيانوي هم او دا احاديث د موجوده زمانے سره سموي هم. خو دهغوي په دے تطبيقي منهج کښې دومره د حدوداو قيود خيال ساتي چه په هغے وجه دامام مهدي سره متعلق احاديثو حيثيت د يو معمے نه کم نه وي.

۸)ددوي په مقابله کښې څه خلق امام مهدي او ددجال د فتنو سره متعلق احاديثوکښې د تطبيق خيال وساتي اومناسب حدونو او قيدونو په رڼا کښې دکار کولو کوشش کوي.خو ددوي نه په خپل کار کښې عموماً دوه غلطۍ کيږي.

۱: يوه غلطي دا چه هغوي يو خاص کس مقرروي. ۲: دويمه غلطي دا چه هغوي دے د پاره وخت مقرروي.

يا بيا ددوي نه په دے کښ يوه غلطي وشي چه دهغې په وجه ددوي په کار کښې د شرعي حدونه خيال د نه ساتلو په وجه برکت او د تحقيق کونکو مشرانو توجه نه وي۔

۹)کتاب الفتن او اشراط الساعه باندے کا رکونکي داسے خلق ډير کم دي چه په کتاب الفتن کښې ذکر کړے شوي سماجي ،مذهبي،معاشرتي ،معاشي صوبائي، قومي يا بين الاقوامي سطح باندے کار کونکي وي ۔ خو دهغوي مقصد صرف د خپلو نظرياتوخورول وي ۔ چه دهغے دپاره کتاب الفتن او اشراط الساعه صرف د مددگار په توګه اخلي ۔

بياهم داسي يوڅو تنظيمونه هم موجود دي چه دکتاب الفتن په رڼا کښې په امت په کښې مخکښې ذکر کړے شوي خاميانو ختمولو کوشش کوي ۔ او دے خلقو ته اکثر د سرکار مدد حاصل وي ۔ خوددوي نه خپلو تصوراتو کښې يوڅو بنيادي غلطۍ کيږي۔

<u>ړومبنۍ تصور</u>:يا خودامام مهدي متعلق داحاديثو علم نۀ وي او که علم وي بيا هم دا وائي چه دا احاديث موضوعي دي ياضعيف دي يا په دے د شيعه ګانو اثر دے يا په امت د هغه لګو خلقو پيروي کول غواړي چه د هغوي په نزد دامام مهدي ظهورپه اصل کښې امت دعملي کارونو نه منع کولودپاره د اغياروسازش او خور کړے شوي جالونو مجموعه ده ۔ د دوي په خيال اصل کارد شريعت تابعداري،ددے نفاذ اوپه دے لاره کښې موجود خنډان لرکولودپاره د درس و تدريس ،تبليغ،تصوف او جهاد نه کار اخستل دي۔

(ددوي خيال دادے چه)امام مهدي طرف ته رابلل په حقيقت کے امت يو غير ضروري څيز طرف ته رابلل دي چه په شريعت کښې يي څۀ حيثيت نشته۔ دغه وجه ده چه د دوي په خيال د امام مهدي د نظريي څه حيثيت نشته ۔

<u>دويم تصور</u>:دويم تصور دادے چه دامام مهدي نظريه لرل خو صحيح ده خود دوي فکر دادے چه هرهغه دهدايت کارچه يو انسان يي کوي،پخپله يا د يو تنظيم اوډلې په ذريعه...نودا کار امام مهدي والا کار شو۔ يعني د دے تصور لرونکو مطابق د امام مهدي مطلب په نيغه لار تلل اوپه شريعت عمل دے ۔ د دوي په نيزضروري نه ده چه امام مهدي دِ يو انسان وي۔

دریم تصور:د دے په خلاف د ځنې خلقو په نیز د امام مهدي وجود به د انسان په شکل کے وي‌خو دا انسان  هرڅوک کیدے شي۔ په هره زمانه او هره علاقه کښ چه کوم انسان هم دامام مهدي په صفاتومتصف شو هغه ته به امام مهدي وئیلې شي۔

څلورم تصور:د ګڼ دعلم خاوندان شیعه ګان اواهل سنتوپه نیز امام مهدي به په آخره زمانه کښې د نبي کریم صل الله علیه وآله وسلم د نسل فاطمي بي بي او حضرت علي په اولاد او سیدنا حسین رضی الله عنه په پشت کښې به وي‌خو دشیعه حضراتو په نیز دا صاحب دولس سوه کاله مخکښې پیدا شوے دے او تر اوسه پورې په یو غار کښې پټ دےد ځني شیعه ګانو په نیز د امام مهدي شخصیت د حضرت خضر علیه السلام په شان دے،موجود في الامصار وغائب عن الانظار،یعني امام مهدي په ښارونو کښې موجود وي خو په نظر به نه راځي۔

پینځم تصور:د ګڼو اهل سنتوپه نیز امام مهدي به دنبي علیه السلام په خاندان کښې پیدا کیږي۔ خودهغوي په نیزد امام مهدي ظهور ته لا ډیره زمانه  ده۔

شپږم تصور:د داسې اهل سنتوتعداد هم ډیر زیات دے چه د هغوي په نیزموجوده دورد امام مهدي زمانه ده‌خو هغوي دا مسئله تکویني ګڼي نه  چه تشریعي۔ مطلب دا چه د امام مهدي سره متعلق شرعي طور مونږ ته د څۀ کار محنت ضرورت نشته او نه مونږ د دے مکلف یو۔ بله چه کله الله اوغواړي د غیب نه به اسباب راپیدا کړي او دغه شان دامام مهدي ظهوربه واقعه شي۔

ددے حضراتود نظریې یوڅو خبرے دادي:

۱:د بیعت نه مخکښې به امام مهدي ته پته نه وي چه زۀ امام مهدي یم او کنه۔

۲:دغه شان  دبیعت نه مخکښې به خلقو ته هم د هغه باره کښې څۀ پته نه وي۔ بلکه ناڅاپه به علمائے کرام امام مهدي وپیژني او د هغوي په لاس به بیعت وکړي۔

۳:د دين چه څومره محنتونه دي هغه ټول چه ادا کيږي داما مهدي د نصرت سبب جوړيږي ـدي دپاره د بيل محنت ضرورت نشته.هم دا ديني جماعتونه به دامام مهدي دظهورنه پس هغوي سره ملاويږي.

۴:دظهورمهدي دپاره که د يو مستقل نوي کار ضرورت وے نوزمونږ اکابروعالمانو به ضرور دغه اړخ ته توجه راګرزولي وه. بس دا دومره ضروري کار نه دےـدے ته توجه ورکول ددين د نورو ضروري کارونونه توجه لرے کيږي. په دے وجه دے نه ځان ساتل پکار دي.

۵:د امام مهدي ظهور دپاره چه کله هم کوششونه شوي دي،په نتيجه کښې امت د فتنو ښکار شوے دےـخير ترے نه دے راوتې. دے وجه نه په شريعت عمل د کاميابۍ ضامن دےـوهمي څيزونو ته پام لرنه د نورو مسئلو راپيدا کيدوسبب کيدي شي.

۶:چه په شريعت عمل کيږي نو د راتلونکوکارونو دپاره تيارے صالح عملونه دي چه د هغي طرف ته ددين نورو شعبۍ دعوت ورکوي لګيا دي.په دے وجه که يو نوے کار شروع شي نو دامت توجه به نوره هم خوره وره شي اومسئلے به پيدا شي.

۷کله چه الله د يو څيز فيصله کوي نو د هغے دپاره د اسبابو بندوبست هم د هغه دطرف نه کيږيـدغه وجه ده که الله تعالې د امام مهدي د ظهور فيصله کوله نو د هغے دپاره به يي اسباب هم راپيدا کړي وو.

۸:څنګه چه افغانستان کښ د جهاد د شرعي فيصلې د پوره کيدو نه پس چه کله افغان جهادي ګوندونو کښې اختلافات پيدا شو نو الله تعالې خود بخود د ملا محمد عمرؒ په صورت کښې يو مشر پيدا کړو او د خپل غيبي خزانو نه يي دامت دپاره د يو نوے قيادت انتظام وکړو.

۹:دغه شان چه په شريعت عمل جاري وي نونصرت،هجرت،جهاد او اجتماعيت د امت دمسئلو حل دےـموجوده زمانه کښې دامام مهدي نظريه خورول د دين په محنتونوکښې سستي پيدا کول دي.او موجوده شرعي کارونه

غیر موجود کارونو دپاره پریخودل دي۔ په دي وجه دا قسمه نظریات پریخودل ضروري دي۔

۱۰:چه کله امام مهدي راشي نو هغه به څه نوي شریعت سره نه راوړي بلکه دیو مجد د په حیث به د نبي علیه السلام سنت طریقې به جاري کولو کوشش کوي۔ په دي وجه د اوس نه په شریعت عمل کول او سنت طریقې جاري کولوکوشش ضروري دے۔دا کارونه یو شخصیت سره تړل صحیح نه دي۔

دا هغه څیزنه دي چه نن صبا د ظهورمهدي د پاره محنت پریخودو د پاره د دلائلو په صورت کښې پیش کیږي۔په دے کښې اکثرسوالونه داسے دي چه په دے محنت د نه پوهیدو وجه پیدا شوي دي۔

..........................................................

د دي ټولوسوالونوجواب دا دے چه د شریعت مطهره نه مراد د نبي علیه السلام د پیغمبرئ مقاصد ترسره کول دي۔ چه په هغي کښې تعلیم د کتاب او حکمت،تزکیه نفوس او دغیبي خبرو علم د هر څه نه ضروري دي۔د دے خبرو وضاحت په حدیث جبریل علیه السلام کښې نبي علیه السلام ایمان،احسان،قیامت او علامات قیامت سره کړي دي۔

په دي کښې هر یو محنت په خپل ځائے د شریعت مستقل او بنیادي رکن دے۔او په دے کښې یو پریخودل دټول دین پریخودل دي۔هم دا وجه ده چه د قیامت په علامو کښې فتنې،ظهور مهدي،فتنه دجال اود نزول عیسي علیه السلام درسونه لوستل او خودل او په دي ایمان ساتل چه څنګه ضروري دي،هم دغه رنګ ددي دپاره عملي محنت ضروري دے۔لکه څنګه چه دایمان، اسلام او احسان دپاره لګیادے محنت کیږي۔ لکه څنګه چه ایمان، اسلام اواحسان منل ،پیژندل ،په هغي عمل کول اوددے خورولو سره سره د دے دنفاذ کوشش د شریعت حکم دے۔بالکل هم دغه شان د علامات قیامت پیژندل،منل،چه په څۀ عمل کیدې شي په هغي عمل کول او چه څۀ پریخودل پکار دي هغه پریخودل او دا شان کوم نیک کار چه په خپله کوو د هغي طرف ته خلق رابلل او دهغي د نافذ کولوکوشش کول د نبي علیه السلام د راتګ مقصد دے۔ نو دا څۀ نوي مستقل محنت نه دے بلکه ددین یو

ضروري حصه ده.او ددے د پريخودوپه وجه حقيقت دادے چه ډيرې مسئلې مينځ ته راتلې شي.صحابو،تابعينو او د دين اکابرو هر دور کښې په دے کښې هريو محنت د دين حصه ګڼلې ده اودے دپاره يې کار کړي دي.

په موجوده حالاتو کښې لکه څنګه چه د دعوت او تبليغ محنت په يو نوي انداز سره کيږي.د مدرسو د نظم او ضبط پيژنګلو د يو شعبې په حيث کيږي.چه د وخت د تقاضو مطابق د امتاحاناتو ترتيب وغيره نوي منظم شکل اختيار کړي دے.

هم دغه شان په بدليدونکي حالاتو کښې لکه څنګه چه ايمان،اسلام او احسان دپاره علمي او درسي سطح باندے لګيادي محنت کيږي.او په عملي توګه مدرسي،خانقاهونه د جهاد ميدانونه او نور د ديني کارونو شعبې خپل منصبي فرائض پوره کوي.دغه شان قيامت او د قيامت د نښو شعبې مثلا فتني،ظهورمهدي،د دجال فتنې او دعيسیٰ عليه السلام نزول سره متعلقه علمي محنت سره سره تطبيقي انداز اور عملي جد وجهد هم د وخت يو اهم تقاضا ده. چه د دي محنت په وجه به بره بيان شوے اند يښنې نه پيدا کيږي.

**سوال(۲):**په غیر مسلم خلقو کښې دقیامت او دعلامات قیامت متعلق کار کولو والو باره کښې څه خیال دې؟

جواب:۱ دعیسایانومشهوره ډلې کیتهولک او آرتهوډیکس دي۔پروټسټنټ ډله د ټولوعیسیانو برخلاف ډله ده۔ په دي کښې هریوه ډله د بلې ډلې ګمراهۍ رانقل کوي او د تورات،انجیل او نورومقدسو صحیفوپه رڼا کښې د ذکر شوي نصوصود تطبیق سره ذکر کوي۔

۲۔هغه یهودیان چه د اسرائیلوبرخلاف دي هغوي د تورات او دهغې د تشریحاتوپه رڼا کښې اسرائیلو طرف ته هجرت کونکي یهودیان د اسرائیلو موجوده حالات ذکر کوي او دآسماني کتابونود دلائلوپه رڼا کښې دهغې تشریح او تطبیق کوي۔

۳۔ د دي په مقابل کښې صیهوني یهود اسرائیل طرف ته هجرت نه کونکي او د اسرائیلو د وجود مخالفینو ته د موسي علیه السلام دتعلیماتو نه غدر کونکي بللې شي۔او په دي باره کښښ دبائیبل او د نورو نصوصوسره د اوسنۍ زمانې تطبیق کوي او دا د" مسایا"د خروج نښه بولي۔

مهدویات او دجالیات کښې دعرب دنیا منلې شوے تحقیق کونکي او مشهورشخصیت منصور عبدالحکیم دے۔په دے موضوع دهغوي ډېرتحقیقي کتابونه چاپ شوي په منظرعام موجود دي۔دغه شان د مصري عالم شیخ امین نوم هم مشهوردے۔خو د دے ښاغلوپه کار کښې د تطبیق د اصولو پیروي نشته او نه د تاویل او تشریح دپاره د مخکښینو او روستنوعالمانو تحقیقاتو ته فکر کوي۔په دي وجه د دوي دکارنه زیات خلق فائده نه اوچتوي۔دغه شان نور تحقیق کونکي دي چه د هغوي په کلام کښ یا خو د وخت تعین دے او یا د یو تنظیم سره وابسته وي یا پکښې د اکابرو عالمانود تابعدارۍ نه کولومسئله وي۔

دغه شان د هندوستان یو محقق اسرارعالم هم دے چه د دین باقاعده عالم نه دے خوپه ډېرو ژبومهارت لرلو په وجه په دے موضوع ډېراهم کتابونه لري۔بیا هم زمونږدکارمدارد شریعت په اتباع،د دین دټولوشرعي ډلواو د معتبرو شخصیاتوداصولو ضوابطواو دتطبیق واضح او درسته پیروي ده۔او دا

نظریه ختمول دي چه د دین دیو کار کولو په وجه به ګڼي د دین  د نورو کارونو نه منع کیدل جائز وي۔ د ایمان، اسلام او احسان سره سره قیامت او د قیامت د نښو په تشریحاتو کښې علمي،تطبیقي اوعملي محنت کولو نه پس د امام مهدي  دبیعت دپاره هجرت ،نصرت او جهاد له رواج ورکول دي۔ والله اعلم باالصواب

**سوال(۳):**دکتاب الفتن د احادیثو تعلق دایمانیاتو سره دے او کنه؟په احادیثو کښې زیات تره پیشن ګوئې قیاس ته نزدي نه معلومیږي،نوپه هغي څنګه یقین وکړو؟د کتاب الفتن د احادیثو الفاظ واضح نه دي چه د هغې په وجه د هغې پوره کیدل او د هغې تطبیقول مشکل وي۔

جواب:پیشن ګوئې او دغیبو خبرې،دئ سره متعلق د نبي کریمؐ او د نورو پیغمبرانو معجزې او دهغوي نه نقل شوي پیشن ګوئي یو اهم باب دے۔ خو په موجوده دور کښې یو طرف ته خوځني د علم خاوندانوته مغالطه شوې ده -(وائي)چه د پیشن ګویو تعلق د ایمانیاتو سره نه دے۔غالباً دهغوي د رائې وجه داده چه کله هغوي ته پته ولګیده چه ډیرې پیشن ګوئ داسې دي چه د هغې الفاظ غیرواضح دي۔ځنې هغه دي چه په ظاهره د سوچ او فکر نه لرې معلومیږي۔ د ځنو په څورالس سوه کاله کښې چرې نه دي ښکاره شوي۔ځنې ښکاره شوي خو دي خو درواياتو مطابق مکمل نه دي پوره شوي۔

د دې ټولو مشکلاتو نه د خلاصي دپاره هغوي دا صورت آسان وګڼوچه بس د دې خبرونه انکار وکړے شي او که چرې ومنلې شي نو بیاهم د دے اهمیت دومره کم کړئ شي چه د انکار برابروي۔ بیادا خپلې کارنامې قانوني کولو دپاره دا خلق رواياتو طرف ته متوجې شو او چه هلته ورته ضعف معلوم شونو د هغوي دا خیال نور هم پوخ شو۔

بل طرف ته چه کله هغوي وکتل چه د دے پیشن ګویانوتعلق اکثراخبارآحاد سره دے نو دا خیال یې وکو چه بیا د دے تعلق د ایمانیاتو سره څنګه کیدې شي؟د دے نه پس د دوي نظر په دې خبره پریوتوچه د پیشن ګوئې خبرې په عقیدو کښې شاملول هځې یو غلو ده۔او ډیره بې ځایه غوندې کاردے -په دې وجه دا تجویز مخې ته راغې چه بس داباب دې هډو بندکړئ شي۔انا لله وانا الیه راجعون۔

که غور وکړئ شي نو دا خبره بالکل ښکاره کیږي چه پیش ګوئي خو د نبوت یو اهم حصهٔ ده۔ځکه چه د"نبي" ټکي مطلب دا دے چه دا لله طرفه خبر بیا مومي نو نورو ته ئي ورسوي۔هم د دے دویم نوم د غیب خبرے دي۔بیا آخر دا څنګه کیدے شي چه آخري او د لوئ عزم خاوند پیغمبر دے دغیب هیڅ خبر نه وي ورکړے۔

قرآنِ کريم هم دغيب دا خبري په چيلنج سره بيان کړے دي بلکه د قرآن پاک د اعجاز يوه حصه د غيب دا خبرے دي۔دالله جل شانه فرمان دے،" **ذَلِكَ مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُونَ أَقْلَامَهُمْ أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُونَ (ال عمران۴۴)**

"ددا دغيب خبري دي او تهٔ خو د هغه خلقو سره موجود نهٔ وے چه کوم وخت هغوي خپل قلمونه وتړل چه څوک د مريم بي بي پالنه کوي او چه خپلو کښ په جګړه وو۔"

بل ځئ ارشاد دے،**"تِلْكَ مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَا أَنْتَ وَلَا قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هَذَا فَاصْبِرْ إِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ "(هود۴۹)**

"دا دغيب خبرے دي چه تاته وحي کيږي،ددےنه مخکښې تاته او ستاقوم ته څهٔ معلومات نهٔ وو۔ صبر کوه بې شکه ښائسته انجام د متقيانو دے"۔

په دےکښ هم هغه خبره دوباره ارشاد شوه او وےفرمائل چه دا هر څهٔ د غيب(پټو)خبرو نه دي۔

دغسې د صحابه کرام رضي الله عنهم په واقعاتوچه غوروکړې شي نو پته لګي چه د هغوي په نيزپيشن ګوئې ډير لوئې اهميت لري۔تر دے پوري چه د روم او فارس د پيش ګويوپه موقع حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنهم په دے وجه شرط کيښودوچه او دجنګ بدردفتحِ نه پس صحابه کرامودا واقعه په ډيرزور شور سره بيان کړه او چه کوم شرط ئې د مشرکينو سره مقررشوے وو هغه هم وصول کړې شو۔دغه شان د يو جنګ موقع پيغمبرعليه السلام چه د کوم کافر په کوم ځائے کښې قتل کيږي خودلي وو،هغه(کافر)يو انچ اخواديخوانه بلکه هم هغه ځائےقتل کړې شو۔

دغه شان حضرت علي رضي الله عنه چه د خوارجو سره دجنګ نه فارغ شونو هغوي د خوارجود لاشونود تلاش حکم ورکړوتر کومې پورے چه دپيغمبرعليه السلام د فرمان مطابق د هغه کس لاش نهٔ وو ملاؤ شوې تر هغه وخت پورے دوي پريشانه وو۔بيا آخر دا چه د هغه نمونې سړي(لاش)ملاؤ شو نو هغوي په آرام شو۔

ددي مقابل کله چه په مشکل حالاتو کښې د صحابه کرامو په پیش ګویوکښ معمولي شک پیدا شو نو نبي علیه السلام سختته زورنه وکړه ـ په یو جنګ کښې واؤریدل چه فلاني سړي د ځان پروا نه ساتي او زبردست جنګ کوي نو نبي علیه السلام خبر ورکړو چه دا سړے دوزخي دے حال دا چه دې سړي په کومه بهادرئ سره جنګ کوو هغې ته صحابه کرام پسخیدل.په دې حالاتوکښې ظاهره ده د داسې کس دوزخي کیدل د حیرانتیا خبره ده.خو چه کله دغه کس زخمي شو او تکلیف نه تنګ شو نو خودکشي وکړه او د نبي علیه السلام پیش ګوئي ټکي په ټکي پوره شوه او ټولو ته داخبره ښکاره شوه چه دوي دالله رشتنې رسول دے. دا نه چه د حالاتو رخ ته وګوري او د پیش ګویو خلاف د خپله ځانه یو رائې قائمه کړي نو دا ممکن نه ده.

پیغمبرعلیه السلام او دصحابو کرامو د اړخه د دې خبرې حیث ثبوت نه ملاویږي چه د پیغمبر علیه السلام د پیش ګویویا نورو اقوالو باره کښې دي د هغوي په ایمان کښ څۀ شک وي.

حقیقت دادے چه کومه خبره هم په صحیح سند سره ثابته وي په هغې ایمان روړل فرض او واجب دي. که دا خبره ایمان کښې داخله وي او که په اخبارآحاد کښې ـ پاتې خبره د ابهام اوداجمال شوه نو اکثر په څه خبرو کښ ابهام مقصود وي او په دې ابهام کښې دانسان آزمائش وي.د ضعیف اوقوي ایمان امتحان وي.په دي وجه محدیثونو د دي احادیثو نوم"کتاب الفتن"کیښود.چه د دي احادیثو په ذریعه د انسانانو امتحان او آزمائش وکړئ شي.الله تعالي دې مونږله دغیب په خبرو او" کتاب الفتن"کښ بیان شوي واقعاتوباندې د عمل توفیق راکړي.

**سوال(۴):**دامام مهدي نه مخکښې چه په دنيا کښې کوم کوم علامات تير شوي دي،په هغې کښې په ځنې احاديثو کښې دروسي نسل کوم کوم ملکونه شامل دي؟د سعودي د باچايانو ترتيب او په دې دوران کښې د امام مهدي د ظهور نه څه مراد دے؟

جواب:په دي روايت کښ مختلف قسمه نښې دي.رومبۍ نښه داده چه په تاسو به ترک حمله وکي او دوئمه نښه داده چه کوم باچه به مال جمع کوي(په مال جمع کولو کښې مشهور وي)نو دا مالدار باچه به مړ شي.او د دې نه پس به داسې باچه راشي چه ضعيف به وي يعني بدن به يې هم کمزوري وي او په حکومت کښې به ئي هم کمزورئ اثروي.دوه کاله به حکومت وکي خو دوه کاله پس به ترې حکومت واخستې شي.حکومت اخستو دپاره"خلع يخلع" صيغه استعمال شوې ده.مطلب داچه حکومت به خو د دۀ وي خو کوي به بل څوک.يعني خلع به وشي.په داسي طريقه به ترې حکومت واخستې شي چه په نوم خو به د هغۀ حکومت وي خو (اصل)بادشاهي به د بل سړي  وي.او د دمشق د جماعت دواړو طرف ته به"خسف"وشي او په شام کښې به کم نه کم درې ډلې راوځي.او دمغرب اوسيدونکي به مصر طرف ته راوځي او دا د سفياني د خروج هم نښه ده.دغه شان په روايت کښې مختلفې خبرې ذکر شويدې.

رومبۍ نښه داده چه ترک به په تاسو حمله وکړي.ترک نومې سړي،دا حضرت نوح عليه السلام د زوي يافث په اولاد کښ دے چه هغۀ ته پينځۀ غټې غټې قبيلې منسوب دي.په دې کې ۱.بنو هياطله ۲.بنو صفده،چه موجوده چينيان دي،ازکس،اسکش٠بنوالروس).دا درې واړه روسي نسل دے يعني دروس چه کومې علاقې دي په دې کښې خورې ورې دا قبيلې موجود دي.۳.سلجوقي خاندان،چه  الپ ارسلان سره د غرونو نه راکوزشو او باچه شو.۴. تتار،منګول او مغل،دا څلورواړه مشهورخاندانونه دي.۵. نوري قبيلي چه د ترکستان په نوم مشهوري دي لکه ازبکستان،تاجکستان او د کرغزستان وغيره علاقې دي.نو دا ټول ترک دي.

په ترک نسل کښ ښۀ انسانان هم شتې او خراب هم.په اوسنۍ زمانه کښ ښۀ ترکيان سلاجقه دي.او په خرابو ترکيانو کښ د کافرانو  موجوده ملکونه لکه

چين،روس او نور بې دينه ملکونه پکښې شامل دي.خو  په دي کښې ځنې داسې خلق  دي چه هغې ته بربر وائي.بربرنسل يو خوافريقي دي او يو ترکي دے.موجوده زمانه کښې که دې نښې ته وکتي شي نو په اسلامي تاريخ روس په شام باندې هغه وخت حمله وکړه چه کله دهغۀ نه دلوئې طاقت( Super Power) نښه په افغانستان کښ د شکست او د سويت يونين د ختميدو سره ولويده.دې نه پس ړومبنئ جګړه ئي په شام کښې د مجاهدينو خلاف شروع کړه.

دې نه پس دوئمه نښه دا بيان شوې ده چه کوم باچه به مال جمع کوو هغه به مړ شي.کۀ اوسنئ زمانه کښ د دي تطبيق وکړي شي نو د شاه عبد الله د مرګ نه پس دا قصه مخې ته راغلې ده.ځکه چه روس د شام په مزکه حمله وکړه.او هم په دغه زمانه کښ د سعودي عرب په تيرو شوو باچايانو کښ د ټولو نه مالدار باچه شاه عبدالله مړ شو.د بي بي سي په يو رپوټ کښ د اکي پټه جاسوسي څانګه،سي آئي اے،دا انکشاف وکو چه د شاه عبد الله په دور کښ د سعودي عرب په خزانه کښ د ټولو زيات مال او دولت جمع شو. دادولت شاه سلمان اودهغۀ ځوئ محمد د يمن په جنګ او په نوروعياشووالوزولو.او دغه شان ځان،خاندان اوملک ئي دراروانو پيش ګوئي د پاره درست ثابت کړو.د دې نه پس فرمائي"ويستخلف بعده ضعيف"د دي نه پس يو ضعيف باچه به خليفه شي.دغه رنګ په ۲۰۱۵ء کښ شاه عبد الله مړ شو.د دې نه په ۲۰۱۷ء کښ شاه سلمان اول محمد بن نائف خپل ولي عهد جوړکړو او بيا ئي  هغه ختم کړو او خپل ځوئ محمد بن سلمان ئي خپل ولي عهد جوړکړو.

۲۰۱۵ء نه ۲۰۱۷ء پورې خو دشاه سلمان حکومت وچليدو خو ۲۰۱۷ نه پس بيا چه کله سلمان خپل ځوئ ولي عهد کړو نود هغې نه پس ټول کارونه د سلمان ځوئ  کوي په ظاهره سلمان باچه دے خو په حقيقت کښې نه دے.

دې نه پس دا خبره وفرمائله چه د دمشق جماعت کښې به خسف وشي.خسف به يا تکويني طور وي يا به پيش ګوئي پوره شوي وي.او دا قسمه ډير واقعات مخي ته راغلي دي.دخسف مطلب يا خو په څۀ وجه دمزکي لاندي تلل دي او

يا د ميزائلواو بمونو په  وجه دخلقو په مزكه ورننوتل دي. لكه دشام مزكه چه د بارودو په وجه تس نس شوي ده.په دي حديث شريف مخكښې دي چه په شام كښې به دري غټې غټې ډلې راوځي.په سنيانو كښ القاعده او داعش،قوم پرستوكښې كرد او نورې ډلې اوشيعه او روافضو كښې دبشارفوج په ټولوكښې اول دے.چه په خپلو لګياووجنګيدل.

**سوال(۵):**د آزربائي جان باره کښې روايات اوددې نه څوک مراد دي؟

جواب:آذربائي جان سره متعلق نعيم بن حماد په کتاب الفتن حديث نمبر۲۱۳باندې نقل کړي دي،"عن النبي ﷺللترک خرجتان،خرجه يخرجون آذربائيجان والثاني يربطون خيولهم بالفرات لا ترک بعدها"

يعني ترکيان به دوه ځله راوځي.يوځل آذربائي جان سره او بل ځل به دفرات سره خپل اسونه تړي.دې نه پس به ترکيان نۀ وي.

دوئم روايت کښې داسې دي،" عن مکحول قال قال رسول اللهﷺ **للترک خرجتان(خروجتان)احداهما يخربون آذربائيجان والثاني يشرعون علي ثني الفرات.هکذا عن عبدالراحمن ابن زيد في حديثه عن رسول الله انه قال ضيعث الله تعالي عن خيولهم الموت فيرجلهم فيکون فيهم ذبح الله الاعظم لا ترک بعده"**.فرمائي چه ترکيان به دوه ځله راوځي يو ځل دفرات خلاف.او بل ځل آذر بائيجان دپاره.عبدالرحمن بن زيد فرمائي چه الله به دهغوي اسونه مړه کړي.بيابه دوي پياده راوځي.د الله د طرفه په دوي مرګ راشي او قتل قتال به وشي.د نه پس به ترکيان راوځي. دغه روايت مکحول دنعيم بن حماد نه په حديث نمبر۱۹۰۵کښ رانقل کړي دي.او آذربائيجان سره متعلق دوئيم روايت دغه شان د شيعه ګانو په کتا ب کښ هم موجود دے.چه دا تري معلوميږي چه کله د آذربائيجان مسئله راشي نو مسلمانان او ترک دواړه به روځي او ډيره وينه به توي شي او دمسلمانانو قتل عام به وشي.دمسلمانانو وينه به توي شي او ددي نه مسلمانانو ته الله تعالي د امام مهدي په ذريعه فتح ورکړي.

هم دابه دامام مهدي دظهور د آخري نښو نه وي.اوس سوال دادے د" ترک"نه دلته څوک مراد دے؟که چري مونږنعرو احاديثو ته وګورو چه د خراسان په باره کښې نقل شوي دي چه د خراسان نه به دجال راوځي يا داسي راغلي دي چه مسلمانان به روم فتح کړي او دشام په فضائلو کښ راغلي دي چه دشام خلق به پکښې هم شريک وي يا د دمشق د غوره والي باره کښ هم احاديث راغلي دي.

دي ټولواحاديثو کښ تعارض ختمولو دپاره مناسب تطبيق دادے چه په دے علاقوښ کوم نيکان خلق دي ددې نه هم هغه مراد دي او ددې علاقې فاسقان

فاجران په فضائلو کښ نه دي داخل بلکه د نيکانو خلقو فضلت مراد دے۔په دې نظر چه ورته وګورې نو اګرچه په موجوده زمانه کښې ډيرے کمئ کوتاهئ دي۔شرعي کمئ هم شته،دعقيدې خرابئ هم شته او ډيرکمزوري عملونه هم شته۔بياهم الحمدلله په امت کښې څۀ نه څۀ دين شعور موجود دے۔

دحديث د دوئم اړخ نه دا معلوميږي چه دترک اطلاق په تاتارهم کيږي۔او دترک اطلاق په روسي نسل هم کيږي اوپه چيني نسل هم دترک اطلاق کيږي۔نودترک نسل چه کومې خرابئ په احاديثو کښ راغلې دې نو دترک نه هم دا مراد اخستل پکار دي۔او چه کوم مسلمانان دي او څۀ نه څۀ محنت هم کوي۔ په هغوي دا احاديث منطبق کول مشکل معلوميږي۔البته دا وئيل چه په دوي کښ خرابئ دي اود خرابې دعقيدي يا نورې خرابئ دي نو امت ددې خرابو نه منع کولو دپاره که چرې داسې احاديث بيان کړيشي چه داکابرو دتربيب او داهل سنت د اصولو مطابق وي نو دې کښې څۀ باک نشته۔

**سوال(۲):**ظهورمهدي اود دجال د فتنې متعلق څۀ اشکالات اودهغې حل...مکاني،زماني،سیاسي،تکویني او شرعي او داهل حل و عقد سره متعلق وضاحت وکړئې؟

جواب:د مهدي د ظهوراو د دجال د فتنې متعلق د تمهید په توګه څوخبرې پیش کوم چه داټول اشکالات به پرې،ان شاء الله،ختم شي۔

<u>ړومبۍ خبره</u>:په احادیثو کښې دظهور مهدي یو څو نښې دي۔کله چې هم دانښې پوره شي امام مهدي به ښکاره شي۔ که په دې نښو کښ یو نښه هم پوره نه وي نو امام مهدي به نه ښکاره کیږي۔په دې نښو کښې یوه نښه زماني ده۔مطلب دا که چرې په یو زمانه کښ داما مهدي نښې بیاموندې شي نوهم په دغه زمانه کښې به امام مهدي ظاهریدل ممکن وي۔خوکه په یو کس کښې دامام مهدي نښې وي اوپه دغه زمانه کښې دامام مهدي نښې نه وي نو دغه کس ته حقیقي مهدي،دکوم وعده چه شوې ده،نه شي وئیلې کیدي۔اګرکه خلق پرې متفق شي او اسلامي حکومت وي۔یا بیاکه یوسړې دامام مهدي دعوه وکړي نوددې سړي دسنن ابي داؤدمطابق دقتل حکم دے۔

ځکه چي دا سړې مفارقه عن الجماعه(دمسلمانانود جماعت نه جدا کیدونکې) دے۔دحدیث داسې الفاظ دي،"فاقتلوه کائنامن کان"یعني دې دي قتل کړې شي اګرکه ډیرلوئې شیخ او سیدوي۔ځکه چه که څوک دامام خلاف دشرعي دلیل نه بغیر خروج کوي نو هغه قتلول پکاردي۔

<u>دوئمه خبره</u>:که امام مهدي زمانه هم بیا موندې شي خوچه دامام مهدي کوم مکان دے هغې مکان باره کښې معلومات نه وي۔یعني چه مکاني صفات پکښې نه وي چه کوم ځائے پیداشوې دے،کوم ځائے لوئې شوې دے،کوم ځائے ته ئې سفر کړې دے،اصل نسب ئې کوم ځائے دے او علم ئې کوم ځائے حاصل کړے دے،تحریک ئې دکوم ځائے نه شروع شوې دےاوچه دا تحریک په امام مهدي ختم شوې دے خو هغه انکار کوي۔خلق په زوره هغه مهدي مني۔نودا مکاني نښې دي او دا ضروري دي۔

<u>درئمه خبره</u>:په دغه زمانه کښې په سیاسي لحاظ سره هغه نښې ضروري دي چه په کومه کښې به امام مهدي رازي۔اوددوې دظهور دپاره سیاسي

طورمعامله سازګاره وي که سیاسي طور معامله ناسازه وي نو اګرکه زماني او مکاني نښې موجودوي خودغه کس ته مونږ امام مهدي نه شو وئیلې.

ځلورمه خبره:دامام مهدي دظاهریدو نه مخکښې د هغهٔ په مددګارو کښې دشرعي صفاتوموجودګي ضروري ده. چه شرعي صفتونه موجود وي نو هله به امام مهدي ښکاره کیږي.که شرعي صفات نهٔ وي یا ذکرشوي صفاتو کښې یو هم نهٔ وي او د خلیفه د انتخاب شرعي طریق کار سر ته ونه رسیدو نو دهٔ ته به امام مهدي نه شي وئیلې.

پینځمه خبره:دغه شان تکویني نښې هم ضروري دي یعني دامام زمانه،مکان او دامام مهدي د ظهور نه مخکښې سیاسي،شرعي او مکاني نښو سره سره په دغه زمانه کښې تکویني صفتونه هم ضروري دي.د تکویني نښو او صفتونو مطلب دادے چه په دغه زمانه کښې به دآسمان او زمکې څهٔ حالت وي.د فضا،د اوبو،دریابونواوبارانونوبه څهٔ حالت وي؟داسمان د درزار او غربار،اسماني بجلي او رڼاګانې به څنګه وي. دخلقواخلاقي صورت حال به څهٔ وي،عادتونه به ئې څنګه وي. که چرې په یو زمانه کښې دا ټولې نښې وي دکومو ذکر چه په احادیثوکښې دامام مهدي دظهور په باره کښې راغلې دي نو بیا به مونږوایو چه دا زمانه، دامکان، دا نښې شخصیه،شرعیه اوتکوینیه موجود دي.دې نه پس علماء به وي اود هیو عالم په لاس به ۳۱۳ کسانو بیعت کړې وي.د دوي حیثیت به حل وعقد دخاوندانووي. او د دوي به دا ذمه واري وي چه په دوي کښې کله دا مطلوبه شرطونه پیداشي نو دغه حل او عقد والاپه لاس به بیعت وکړي او دوي ټولو په یوداسې کس اتفاق وکړي چه په هغهٔ کښې به تقریباً۷۴،۷۵نښې موجود وي او امام مهدي به دبیعت نه انکار کوي او دوي به اصرارکوي او مجبوره کوي به ئې نودا بیعت په اصل کښې مکمل خلافت حسابیګي.

ښکاره خبره ده چه داهل حل وعقد به امام مهدي پیژني،دهغهٔ پیژند ګلو به وي او دهغهٔ د تقویٰ نه به ښهٔ خبر وي.دامام مهدي په غټو نښو کښې ړومبئ نښنه داده چه هغه به دامامت په منصب فائز وي فاطمي او حسني حسیني به وي.د شریعت په رڼا کښې به یو متفقه شخصیت وي او هیڅ قسمه ډلې یا تنظیم سره به بغض نه لري.باقاعده د یوډلې سره به وابسته هم نه وي که وي هم نو داسې نه چه شرعي اصولومخالفت د کوي.دغه شان د خلقو هغهٔ سره عقیدت

او دهغهٔ په خلافت اتفاق دامام مهدي نښې دي‌که دا نښې بيا موندې شوې نو داکس به خليفه اوامام وي‌د خليفه کيدو مطلب دادے چه دمسلمانانو د بادشاهئ سره متعلقه ټولو کارونوذمه وار به وي‌يعني ذمه واري په دوي وي او امامت يعني په شرعي امورو کښې ددوي اتباع،چه دعالمانو ذمه داري شمارلې شي،دا به هم د امام مهدي وي‌ لکه څنګه چه داؤد عليه السلام اوسليمان عليه السلام سره نبوت اوخلافت دواړه وو‌ يا د موسیٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام سره دواړه ذمه وارئ وے‌ لکه څنګه چه طالوت عليه السلام په زمانه کښ حضرت طالوت عليه السلام بادشاه وواودوخت پيغمبرامام ووخو دامام مهدي به ناشنا شان وي دوي کښ به دواړه صفتونه وي‌په يو وخت کښې امام به هم وي اوخليفه هم‌ او دغه شان مسلمانان به يوموټې کړي‌

دامام مهدي دظهورد زمانې نه مخکښې چه دمسلمانانو په ذهنونوکښې به ددين کوم مطلب او خيالات وي په هغې چه به څومره خرابورواج بياموندي وي اوڅومره ظلمونواوبې انصافوکښې چه به دا امت اخته شوې وي چه دهغې نه پس به د قتل عام اودوينې بهيدو حالات به جوړ شي تر دې چه په الله وئيلواو اسلام قبلولوبه خلق قتل کړې شي‌دحالاتو جبر به دومره حد ته ورسي چه پوره دنيا به دظلم نه ډکه شي‌خو چه کله دالله رحم مسلمان امت ته متوجه شي نو امام مهدي به راشي او ټوله مزکه به د عدل او انصاف نه ډکه کړي‌اود ظلم نه ډکه علاقه روم به فتح کړي‌د يورپ ظالمانه نظام به ختم شي او په دغه زمانه کښ د اسلام جهنډه به په ټوله نړئ اوچته شي‌هم په دے زمانه کښ به دجال راشي او د ظلم او ستم بازار به ګرم کړې‌ددجال د خاتمې دپاره به عيسیٰ عليه السلام تشريف راؤړي‌ دا شپږبنيادي علامات دي چه په هغې کښې زماني،مکاني،تشخېصې،سياسي،تکويني او شرعي سرفهرست دي‌

## ددجال کارکردګي او په موجوده زمانه کښې دهغۀ طريقه کار

**سوال(۷):**د دجال په باره که چرې د رواياتو جائزه واخستې شي نو دا پته لګي چه دنيا کښې به دجال د عامو خلقو په مابين کښې د راتلو انداز مختلف وي.د بعضې رواياتونه معلوميږي چه دې به د مصر په ښارقوص کښ پيدا کيږي.څني رواياتو کښې د دجال د خوراک ځښاک ذکر دے څنې کښ د ګرزيدو راګرځيدوذکر دے.په څنې کښې د دجال د کعبي شريفي نه د طواف کولو ذکر دے.او بعضو کښې د ابنِ صياد په شکل کښ تذکره شوي ده.په بعضي نورو رواياتو کښې داسي ذکر راغلي دے چه شيطانان اودجال به رازي او تاسو ته په جماعتونو کښ د دين خبري کوي.په بعضي رواياتو کښ د دجال په زنځيرونو ددتړلوذکر دے.اوپه آخره زمانه کښ به راؤوزي اوپه ټوله دنيا کښ به فساد خور کړي.او په مزه مزه به د خدائے دعوه وکړي او په مکه او مدينه کښې به د داخيليدو ناکاميابه کوشش کولو ذکر دے.

**سوال (۸):**اوس پوښتنه داده  چه په دي مختلفو رواياتو کښې د دجال په ډيرو شکلونوکښې راتلل څنګه ممکن کيدئ  شي؟آيا دجال هم دشيطان په شان شخصيت دے او خپل ذريت لري که څنګه؟لکه څنګه چه حديث شريف کښې دي چه ددجال نه مخکښې به ديرش دجالان راځي او هر يو به د نبوت دعوه کويَ يا د دي نه مراد ددجال پيروکار دي؟ او آيا يو کس چه په زنځيرونو کښ تړلي شوي وي څنګه مختلف قسمه کارونه کوي شي۔

جواب:جواب نه مخکښ د تمهيد په توګه په دې خبره ځان پوهه کړئ چه څهٔ رنګې قبر کښې کيښودو نه پس به د هر انسان نه تپوس کيږي او دي د پاره د نکير او منکر په نوم فرشتې به راځي،څنګه چه دا فرشته يوه ده او په يو وخت کښې په ټوله  دنيا کښې خپل کارونه سر ته رسوي۔کيدئ شي هم دغسې طاقت الله پاک دجال له هم ورکړې وي۔او څنګه چه هر کس ته په قبر کښ د نبي عليه السلام مخ مبارک ښودلې شي حالانکه دا نظاره په بے شماره ځايونو کښې کيږي دغه شان دجال له به هم د ډيرو کارونو طاقت  ورکړئ شوې وي۔

الله تعالي به دجال له د فطرت نه پورته د ډيرو کارونو طاقت د استدراج په طور ورکړې وي۔څنګه چيې فرشتو،پيريانو او شيطانانو ته په ډيرو شکلونو کښې د راتلو صلاحيت ورکړے شوے دے۔نو دغه شان دجال ته به هم داسې طاقتونه ورکړے شوي وي چه د انسانانو بے لاره کولودپاره به دا طاقتونه استعمالوي۔ يو سوال داهم دے چه شيطان ته خو دا دومره لوئي عمر او طاقت دآدم عليه السلام سره د بغض په وجه د امتحان  په توګه ملاو شوې دے نو دجال ته به دا دومره قوت طاقت ولې ورکړې شوې وي؟

نو د دے جواب دادا دے چه قرآن وحديث کښې غور فکرنه پس دا خبره معلوميږي چه دجال به د سليمان عليه السلام په زمانه کښې د شيطانانو سره ملاو شو او د هغوي حکومت ته به ئ د نقصان رسولوکوشش کولو۔نو الله تعالي سليمان عليه السلام ته د پيريانو د قابو کولو علم ورکړو۔چه د هغې په وجه سليمان عليه السلام دوي نه مختلف کارونه اخستل شروع کړل۔او چه کومو به انکار وکړونوخلق د هغوي دشر نه بچ کولو دپاره به يې په سمندرونوکښې قيد کړل۔وآخرين مقرنين في الصفاد...اود صحيح مسلم په

مقدمه کښې د عمرو بن العاصؓ په روایت کښې دي چه په آخره زمانه کښې به شیطانان راوځي او خلقوته به جماعتونو کښ دین ښائي۔

دګمان په طور داهم وئیلې کیدئ شي چه سامري هم د فرعون دحکومت دمضبوطیا،د مصر داحرام تعمیرات جوړولو،بني اسرائیلوکښې دفتنه او فساد پیداکولو اود موسیٰ او هارون علیهماالسلام باره کښې غلطې خبریې خوررولوکښې ډیر مخکښې مخکښې ووخوچه کله ئي په بني اسرائیلو کښ د بت پرستئ رواجولو کوشش وکړونو الله تعالي د موسیٰ علیه السلام په ژبه مبارکه هغهٔ له دسزا په طور د ژوندي ساتلو وعده وفرمائله، وان لک موعدا لن تخلفه۔۔۔ځنګه چه الله پاک شیطان له د انسانانو د آزمائش دپاره اوږد عمر ورکړے دے۔وئیلي شي چه روستو زمانه کښ الله پاک د سلیمان علیه السلام په لاس سامري د سمندر په جزیرو کښ قید کړو۔

اوس په دے خبره پوهیدل پکار دي چه ځنګه د دنیا باره کښ فرمائیلي شوي دي چه۔"الدنیا سجن المؤمن وجنۃ الکافر"یعني دنیا د مومن دپاره قید خانه او د کافر دپاره جنت دے۔خو دا قید خانه دالله تعالي احکامات منلو او دنفس دنافرمانئ په وجه داسي حالت پیش کوي چه لکه دا یو جیل وي او کافر دالله حکم نه مني او د نفس هر خواهش پوره کوي نو د هغهٔ دپاره ګویا دا دنیا په ظاهره یو جنت او آزادي ده۔حال دا دے چه په حقیقت کښ داسي نه ده۔

او د دے دویم مثال دا دے چه په روژه کښ د نیک اعمالو د ماحول په وجه شیطانان په سمندرونوکښ وتړلي شي ځکه چي دکم خوراک په وجه دنفس اتباع نه کیږي‌د ګناه ماحول نهٔ وي نو نیکو طرف ته شوق زیات شي۔خو که دکم خوراک باوجود یو سړي دنفس خبره مني او د ګناه ماحول نهٔ وي خو بیا هم ځان دپاره پخپله دګناه ماحول جوړوي نو د هغهٔ دپاره د دي خبري هیڅ فائده نشته چه شیطانان دي په سمندرونو کښ تړلے وي۔ځکه چه سمندر کښ سرکشه شییطانان قید وي عام شیطانان خو بیاهم موجود وي۔او د انسان په شکل کښ هم شیطانان موجود وي۔

دغه شان د دجال د قید ولو ذکر هم دے۔نبي علیه السلام د امت په باره کښې چه د فتنو کومې پیشن ګوئي کړې دي د هغې مطلب دادے چه مونږ ځان د دغې فتنو نه وساتو اونور خلق هم بچ کو۔که چرې مونږ‌ځان او نور خلق

دفتنو نه بچ نه کړل نو دا فتني به دجال او د هغهٔ نسل د قید نه آزاد کړي۔ ځکه چه د نیکو ماحول او د فتنو نه نجات په اصل کښې دجال او دجالي نظام په زنځیرونو کښې تړل دي۔ چه کله امت په فتنو کښې مبتلا شي نو دجال او د هغهٔ کارندویه به ازاد شي دجالي نظام دپاره به کوششونه کوي او نیکان صالحان به قید کوي۔او د دې مثال لکه چه په حدیث شریف کښې بیان شوي دے چه کله یو کس دروغ وائي نو درحمت فرښتې د هغهٔ نه په میلونو لرې تختي اود بسم الله نه وئیلوپه وجه شیطان په خوراک څښاک کښې شریکیږي او بسم الله وئیلوونه پس التې کوي۔او چه کله مؤمن ذکرکوي نو شیطان لرے تختي او چه ذکر نه کوي نوشیطان د دهٔ په زړهٔ خپل خړتم ورخکته کړي او سپیرهٔ والي د دهٔ په زړهٔ کښې ورداخل کړي۔دغه دا ئي هم فرمائیلې دي چه کله انسان د سحر مونز له پاڅي نو شیطان تري نه تختي او چه (مونز نه بغیر)واپس اودهٔ شي نو شیطان د دهٔ په غوږونو کښ متیازې کوي۔

د دے روایاتونه معلومیږې چه د فرشتو تیښته د گناهونوپه وجه او دشیطانانوراتګ د نیکو اعمالو د نیش والي او سپیرهٔ توب په وجه دي۔دغه شان د دجالي نظام قیام دخلا فت د سقوط په وجه دے۔او دجال راتلل،دفتنو ډیروالي او د نیکو دلږوالي په وجه دے۔ تر دے حده پورے چه عالمان،جماتونه،بیت المقدس،حج او دمونزحقیقي روح او دشعائرو به خاتمه وشي۔

ددے نه ثابتیږي چه په یو وخت کښې یو کس قید کیدې هم شي او آزاد هم۔او د دجال حقیقي آزادي خو به د فتنو د تورو تیارو د خوریدوپه وخت کښې وي۔البته نیمګړې آزادي به کله نه کله د مخصوص فتنو د ډیروالي په وجه وي۔خو چه دا فتني بندې شي نو دجال بیا قید کیدیشي،لکه څنګه چه د شیطان په باره کښ ډیرواحادیثونه ثابتیږي۔

بیا داهم کیدیشي چه په یو وخت کښ به فتني نه وي ولے تکویني طور به دجال ته د یو مخصوص وخت دپاره آزادي ملو شي لکه د بدر په غزاکښې چه شیطان په ډاګه ګرځیدو خو چه کله ئي د فرښتو نصرت په نظرراغلو نو وے وئیل،اني ارې ما لا ترون-----

لکه څنګه چه د نیکانو صالحانو خلقوخپلو کښې رابطه وي هم دغه شان د شیطانانو او دهغوي هم خیال دجالي مخلوق هم مسلمانانو ته تکلیف رسولو دپاره رابطه وي.د الله جل شانه ارشادے،"وکذالک جعلنا لکل نبی عدو شیطین الجن والانس------او دغه شن مونږ دهر پیغمر دپاره مونږه د انسانانو او د پیریانو شیطانان دشمنان کړي دي چه یو بل له دهوکه ورکولو دپاره په ظاهره ښائسته او د دین نه د بیزارئ خبرې کوي لګیا وي.

د دے نور وضاحت دا دے چه څنګه د تیهه په میدان کښ آزاد وو.هغوي من وسلوی،دوریځو سوري،د جامو نه خیرنیدل او داسې نور ډیر نعمتونه،ولي بیا هم د تیهه دمیدان نه وتل دهغوي دجهاد نه دانکاراو موسیٰ علیه اللسلام ته رټ جواب"فاذهب انت وربک فقاتلا----- ورکولو په وجه د سزا په طورسرګردان وو،یتیهون في الارض---خو دابندول او قید کول داسي وو لکه څنګه چه یاجوج ماجوج د بندیدوباوجود د مهذب قومونو(روس،چین،ترک او منګول) په شکل کښې لړلړ.راوځي او نیکان خلق پریشانه کوي او آخره زمانه کښ به ټول راوځي.څنګه چه حدیث شریف دے چه دیاجوج ماجوج په دیوال کښې سوري شوے دے. معلومه شوه چه دوي د دغے سوري نه راوځي نو دنورو انسانانو په شان به دنیاکښې آباد شي.

هم په دے انځورکښې که د هغه احادیثو مطالعه وکړي شي د کومو مطابق چه شیطانان په فضا،هوا اوسمندرونو کښې بغیر د څۀ رکاوټ نه سفر کوي.خو دنیا کښې د فتنو ډیر والي په وجه د دجال پیروکار به زیات شي نو د دې طاقتونو نه زیات طاقتونه به دجال سره وي چه په هغې کښې د هواګانوقابو کول،څوک ناروغه کول،څوک روغول،چاله خزانې ورکول،څوک په ظاهره جنت کښې اوڅوک په دوزخ کښې ساتل او څوک مړکول او څوک ژوندي کول،دا ټول په دجالي قوتونو کښ شامل دي.والله اعلم باالصواب

**سوال (۹):**د امام مهدي د ظاهريدو نه پس به د دنيا دمسلمانانو څۀ حالت وي او په دغه وخت کښې به دنيا کښې څۀ حال وي؟

جواب:دامام مهدي د ظاهريدو نه پس به د ټولې دنيا معتدل انسانان که هرې فرقې،تنظيم،مسلک او مذهب سره تعلق ساتي،هغوي به دامام مهدي په قيادت متفق شي او د کفر سره به جنګ شروع کړي۔ددوي په مقابله به د کافرانو يوه ډله وي،څنګه چه په حديث کښې فرمائيلي شوي دي،**حتی يصيرالناس الي فسطاطين،فسطاط ايمان لانفاق فيه وفسطاط نفاق لايمان فيه"**يعني مسلمانان به دوه ډلوکښ تقسيم شي۔يعني منافقه ډله به ختم شي داسې به نه وي چه ايمان هم وي او کفرهم۔

يو متواتر روايت داهم دے چه يو جماعت به دحق د غلبې دپاره جنګيږي تر دي چه دهغې آخري حصه به د دجال سره وجنګيږي"د دې روايت نه داهم معلوميږي چه د دجال دراتلو پورے به يوه ډله د هر قسم منافقت نه پاکه وي او د اعلائے کلمت الله دپاره به جنګيږي۔ددي نه مخکښې دا خبره معلومه شوه چه اخلاص مند مسلمانان به د امام مهدي په مشرئ کې راوځې او د کفري طاقتونو سره به وجنګيږي۔يو خبره داهم معلومه شوه چه دا امت د خير امت دے۔د خير امت معنی داده چه جهاد،قتال او ددين نور محنتونه به کوي او عملاًبه دحق ملګرتيا کوي۔په دے وجه ددے امت اجماع معتبر ده۔څنګه چي فرمائيلي شوي دي چه**"وکذالک جعلنکم امتا وسطا"**اوداچه **"لاتجتمع امتي علي الضلاله"**،دي نه معلومه شوه چه دا امت مجموعي طورپه دوکه (دجل او فريب)کښې نه شي پريوتې۔دا نۀ شي کيدے چه پوره امر په کفر متفق شي بلکه په هره زمانه کښې به ځني خلق داسې وي چه د کفر او فسق په مقابله کښې به هميشه د دليل او حجت په اعتبار سره غالب وي۔د هغوي قول او فعل به دحق دتائيداو نصرت دپاره وي۔دغه شان په اعتبارسره هم الله رب العزت دا دين غالب ساتي۔

**سوال(۱۰):**په موجوده زمانه کښې د ډیرواړخونو نه به دامام مهدي د ظهور دعوې کیږي،نوپه دې کښې د رشتیني مهدي پیژندګلوبه څنګه کیږي؟

جواب:قرآن وحدیث کښۀ درشتیني امام مهدي د پیژنګلو دپاره بیان شوي صفات او علامات داسې لوئے لوئے نښې دي چه د هغې په موجودګئ کښې به دا وئیلې شي چه دا رشتیني مهدي دے۔او په دے کښې د ټولو نه لویه نښه داده چه د امام مهدي په زمانه کښې به شریعت پوره پوره نافذ وي یورپ به غوندفتح شي،هم دې زمانه کښې به دجال راشي او ددجال د قتل دپاره به حضرت عیسیٰ علیه السلام راکوز شي۔

**سوال(۱۱):**ځمونږپه خیال کښې یو خبره ده چه د امام مهدي په زمانه کښې به د هغوي د رشتینوالي دپاره دآسمان نه یو آواز کیږي اودې سره به فرشتې هم وي،نو آیادا خبره د احادیثو نه ثابته ده؟

جواب: جواب:داد بني اسرائیلو تصوردے چه هغوي به دهر یوخیزحقانیت د مافوق الفطرت څیزونو سره تړلو۔اوس زمونږمسلمانان هم دا غوښتنې کوي۔ځنګه چه یهدویانومطالبه کړے وه،**"حتی تاتینا بقربان تاکله النار"**یعني ترڅو چه اورراکوزشي او زمونږقرباني اونۀ سوزوي،تر هغې وخته پورے مونږ ددے حقیقی خبرې تصدیق نۀ شو کولے۔په یو بل ځې کښې ارشاد دے چه،**"یسئلک اهل الکتاب ان تنزل علینا کتابا من السماء"**یعني اهل کتاب ستا نه مطالبه کوي چه د آسمان نه په مونږکتاب نازل که**!**خو کله چه به دهغوي نه دعمل اوخاص کر دجهاد مطالبه وشوه نودوي به وئیل،**"فاذهب انت وربک فقاتلاانا ههنا قاعدون"**یعني حضرت موسیٰ علیه السلام ته ئي وئیل چه تۀ پخپله لاړشه اوستا رب دے لاړشي۔تاسو وجنګیږئ او مونږ به دلته ناست یو۔هم دغه شان صورت حال نن زمونږ هم دے۔

هر کله چه دنبي علیه السلام دتائید دپاره فرشتې راکوزې نۀ شي چه خلقو دا د الله پیغبردے۔ بلکه حکم داوو چه په غیبو یقین وکړئ۔ دغه شان د سیدنا ابوبکرؓدخلافت دتائیددپاره نه خود آسمان نه آواز شوې وواو نۀ فرشتې د آسمان نه راکوزے شوې وې۔نو هم دغه شان د امام مهدي علیه الرضوان د تائید دپاره به په ظاهره د عامو خلقو دپاره نۀ خو آسماني آواز کیږي نه به دهغوي د تصدیق دپاره فرشتې راکوزیږي۔البته په بعضو روایاتو کښې دظهورمهدي سره متعلق د آوازونو ذکر راغلې دے۔نوددے نه مراد هغه آوازونه دي چه لکه ځنګه چه قبر آواز کوي چه زه د چینجو کور ئم یا د آسمان نه یو فرښته اعلان کوي چه یا الله خرچ کونکوته زیاته ورکړے اود شومانومال کم کړے۔او ځنګه چه په لیلۃ القدر کښ جبریل علیه السلام راکوزیږي او عبادت ګزارخلقو سره لاسونه ملاوي۔نو دامام مهدي علیه الرضوان باره کښې چه کوم ذکر شوے آثاردي د هغي نه هم دغه مراد کیدئ شي۔

بیاهم الله رب العزت ددي امت دپاره خاص کر په آخره زمانه کښ دامام مهدي امداد کونکو خوش قسمتودپاره د یقین هغه عظیم نعمت ورکړے دے چه هغوي به دامام مهدي د تصدیق دپاره د فرښتو دنازیلیدو او دآسماني آوازونو مطالبه نۀ کوي.بلکه د شریعت په ظاهري اصولوپوره کیدونکي او د باطني گناهونونه دپاک شخصیت چه کله انتخاب وشي اوپه دغه زمانه کښې مکاني، زماني او سیاسي نښي موجود وي او تکویني طورهم صورت حال برابرشي او اهلِ حل وعقدعلمائے کرام دامام مهدي په بیعت متفق شي نوداامام مهدي دے او ددۀ اتباع فرض ده۔

**سوال:(۱۲)**دا علمائے سبعه یا اهل وعقد کوم خلق دی؟

جواب:دا به هغه خلق وی چه د امام مهدی د راتلو نه مخښکےددین دنوروشعبو سره به دهغه د کمک اوملګرتیاد پاره به خلق تیاروی-دامام مهدی بیعت د پاره خلق تیارولو والا هر کس به غلمائے سبعه وی،لکه څنګه چه د دنیا په نورو کارونوکښي څوک وړومبي نه کوم کار کوی هغه د دهغي کار جوګه وی،جنتی هغه وی چه ژوند کښ جنت د پاره عمل کوی،هم دا رنګ کم څوک چه د دعوت کار کوی ته تبلیغی وائی هم دغه رنګ د مهدی راتلو نه وړاندي چه څوک خلق د امام مهدی د بیعت د پاره تیاروی هم هغه کس د امام مهدی د نصرت جوګه وی-

د امام دراتګ نه وړاندي ددنیا تکوینی حالاتو خرابیدل او دبیعت مهدی د پاره زمونږ ذمه داریاني:

**سوال(۱۳):**د امام مهدی راتګ نه وړاندي تکوینی توګه باندي د دنیا حالات خرابیدل او په دي لړ کښې راتلونکي بدلون  د حدیثو په رڼا کښې وضاحت وکړي؟

جواب:تکوینی توګه باندې حالات خرابیدومطلب دې موسمی بدلون،فضائی بدلون،سمندری بدلون اونور معاشی اومعاشرتی بدلون راښکاراشی-مثلاً موسم بدلون باره کښې روایت ذکر شوي د ضرورت په وخت به باران نه کیږی،مګر چې ضرورت نه وی باران به ډیر کیږی او د فائدې په ځائے نقصان ډیروی-

یو علامت دا بیان شوې دي چه د مهدی درا تلو نه مخکښې دنمر رختو سره یو نخښه راښکارا شی،بعضو روایاتو کښې دی چه په شام کښې به نه ختمیدودجنګ فتنه شروع شي او د دوران کښې به د آسمان نه دلاس په شکل کښې یوه نخښه ښکارا شي چه اشاره به کوی-۲۰۱۵کښ دامریکي فلکیاتی اداري ناسا نه یو خبر شائع شوي وو چه دمشرق طرف نه د لاس په شکل کښې د کهکشاؤو یو جرمټ اشاره کوله –بعض آثارو کښې راغلي دی چه  د ګرمي موسم کښې ګرم علاقو کښې یخني او یخو علاقو کښي به ګرمي وي-هم دغه شان  د سیلابونو تذکره هم رویاتو کښې راغلي دی،د ذکر شو علاماتو دپورا کیدو ننداره موږ په موجوده وخت کوؤ-

صحاح سته کښې دي چه دعرب په زمکه باندې چرته چه صحراګانې دی هلته به باغونه او فصلونه کرل شروع شي-او بعضو روایاتو کښې دی چه دولت دومره زیات شي چه یو مزدور به د ورځ په سل دینار مزدري اخستلو خفه وی-د مکي په زمکه به  ډ یرسرنګونه وی-او بعضو روایاتو کښې دی چه دعرب مفلس خلق به دنګ دنګ عمارتونه جوړ کړي-مکه مکرمه کښې جبل ابی قبیس اونورغرونه به دخپل ځائي نه لر شي-روایاتو کښې دي چه د ې ټولو سهولتونو باوجود دعرب خلق به بت پرستي شروع کړي،او په دوي کښې ښځي د ګډا وسندرواهتمام کوی،لکه څنګه چه د دبئي په سړکونوباند لګیدل دی او عربو ملکونو کښې وس مختلف ځایونو کښې سندري ګډاګاني ډیرې دي- یو روایت کښي دې چه اهل حضر یعني د جدې خلق به دوباره د عرب په زمکه باندې بت ولګوی ۲۰۱۹ کښ په جده او ریاض کښې  څۀ

بتان لګیدلی دی-یو روایت کښې دی چه دفضا نه به فتنې راوریږی لکه انټرنټ او سټلائټ د راتلو نه پس دا علامات خلق په خپلو سترګو وینی-

دصحیحین په روایت کښې دی چه د مدینې په مشرق د نجد دقبیله ربیعه ساربانو(اوښانوسرونکی)کښې به قرن الشیطن راپیدا شی،چه موجوده دور ریاض کښې د دي ډیر مطلبونه کییدي شی،چه په دي قرن یعنی شیطانی طرز حکومت یوه صدئ هم کیدي شی او یو مطلب دا چه د خلافت عثمانیه په ختمولو کښې اهم کردار ادا کولو والا نجد یعني درياض آل سعود خاندان بغیردځه تاویل په هغوي منطبق کیدې شي،ځکه چه په دي حدیث کښې دنفس الرحمان د راتلو ذکر شوې دي او د دے حدیث په یو طریق کښې فرمائیلی دی:**الهم بارک لنا فی یمننا** اے الله ځمونږیمن کښې برکت واچې او کله چه دهغوی صلي الله علیه و سلم نه د مشرق ، قبیله ربیعه او نجد باره کښې تپوس وشونو هغوي وفرمائیل چه دے ځائے نه به د شیطان ښکر راښکاره کیږي- که تاریخ وګوري نو معلومیږي چه نجد ریاض ته مخښکښې چه کله هم حکومت نه دې ملاؤ شوي,لیکن که دي نه نجد عراق مطلب واخستلې شي اویا نجد ریاض مطلب واخستلې شي نو هیڅ فرق نشته ځکه چه دواړو علاقو نه فتنې را وتې دی,دیمامه د قبیله ربیعه نه د مرتدینو فتنه راوتې ده او آل سعود هم د قبیله ربیعه سره تعلق لرلو والا د یمامه او نجد اوسیدونکی دی-

د قرن الشیطان نه مطلب د شیطان د ښکرو تابعداري هم کیدې شي یعني دمحرماتو ارتکاب او د فرائضو وغیره پریخودل هم په دې کښې شامل دی او د شعائرالله بے حرمتي هم مراد ده،محرمات کښې د ټولو نه زیات محرم شراب،زنا،بلادالحرمین،د کعبه او مدینه منوره،مساجد او علمائے کرام دي،نو د شرابو نوم بدلول سره شراب حلالو او استعمالول،مسلمانانو کے بے حیائی خورول،بلادالحرمین کښې درقص او سرود محفلونه،د علمائے کرام او دیندار خلقو بے عزتی کول،او د بے دین ،فساق فجار وغیره خلقو عزت ،درناوے او هغوی په لوئے لوئے عہدو باندے مقررول-

قرن الشیطان نه یو مطلب دا هم کیدے شی په یو حدیث کے دی چه د نمر راختو او پریوتو په وخت کښې شیطان خپل ښکر د نمر سره یو ځائے کوی چه د دے عبادت کولو والا ته دا ظاهر شی چه نمر راخیژولو او ډوبولو

والا، ابلیس دے،نو دغه شان به  قرب قیامت کښې د مشرق  قبیله ربیعه د خلقو  یو خاندان ته به حکومت ملاؤ شی،د هغوی سره به شیطان د ښکرو په شان نظام وی او د هغے په ذریعه به په خلقو حکومت قائم  کړی او خپل ظالمانه طریقے به نافذ کړی اوداﷲ نظام خلافت  به ختم کړی او دشیطانی ښکرو کفری نظام  بہ قائم کړی-

قرن الشیطان نه مراد د سعودی عرب ښار  نجد یعنی ریاض کښې نصب شده میزائل سسټم دے،چه دا به په  خوا ؤشا اسلامی ملکونو کښې د امریکے عمل داری یقینی کولو د پاره استعمالولے شی-

د نمر راختو سره یو نخښه دوالدینو بے عزتی او هغوی کم تر ګڼل هم کیدے شی،لکه یو حدیث  دے:

**ان تلد الامۃ ربتها** ترجمه:چه دمور نه به خپله مالکه پیدا شي  ،یعنی د دنیا ہر څیز به الټا شی،د حکمرانې باره کې بل حدیث دے:**اذا وسد الامر الی غیره فنتظر الساعۃ:**ترجمه:کله چه تاسو ووینے چه د حکومت اختیار نا اہله خلقو ته ملاؤ شی،نو د قیامت انتاظر کوئ-دغه شان به عمائے کرام کے  تقویٰ ختمه شی او علما به دیند دنیا ګټلو د پاره حاصلوی-او دنیا کښې به د ټولو خراب خلق علما وی،ددوی نه به فتنے راوځی-

دنمر سره د یو نخښے راوتو یو مطلب دا هم کیدے شی چه کفری نظام به مکمل غالب شی او اسلامی نظام به ختم شی،د دے نه پس به د خلقو د کورونو نه به  اسلام هم ووځي،ښځو به لباس اغوستے وي خو لغړے به ښکاري،سړی به خپل خواهش  دسړو نه پورا کوی او ښځې به خپل خواهش د ښځو سره پورا کوی، زنا به عام کهولاؤ کیږی، دښځو سرونه به د بختي اوښانو په شان اوچت وی ،ښځې سړي به یو ځائے کارونه کوی،ښځې به خپل حمل ختمولو کښ هیڅ پرواه نه کوی،او په مزه مزه به دین  ناآشنا شی او دیندار خلقو ته به خلق سپک ګوری او مسلمان ملکونو کښ  په دین عمل کول به په لاسونو کښې بلې سکروټې  نیول وی-حاکمان به صرف هغه خلق ژوندی پریږدي څوک چه دهغوی دهر  حکم تابعداری کوی-او د کفارو ملکونو کښې به د مسلمانانو ژوند ګران شی,صرف داﷲ په نوم اخستو به دمسلمانانو د وینو سیلابونه بیولئ شی او هغوی به بندیوانولې شی-

**سوال:(۱۴):**امام مهدی چه په کوم کال ظهور کیږي په هغه کال به خلق بغیرد امام حج کوی او دغه کال نه په منیٰ کښې خونریزی کیږی د دے حدیث څه حیثیت دے او ددے څه دلیل دے او په موجوده وخت کښ بغیر د امام نه حج ته تګ څه مطلب دے او په منیٰ کښ خون ریزی څه تحقیق دے؟

جواب:دحدیثو په کتابونو کښ دا حدیث په درے طریقو مروی دے په دے کښې یو حدیث نعیم بن حماد نه کتاب الفتن کښ حدیث نمبر986 باندے نقل دے امام مستدرک کښ په حدیث نمبر8537باندے نقل کوی،او ددے سند د عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده نه مروي دے،ددے حدیث حاصل دا دے چه په ذی قعده کښ به د قبائلو په مینځ کښې ډلې جوړے شی، د هغے په وجه به حاجیان واپس شی او په منیٰ کښې به خون ریز جنګ وشی چه په هغے کښې به د مړو شمیر زیات شی په د جنګونو کښې به دومره وینه توی شی چه وینه به جمره عقبه ته ورسی- ددے حدیث سند باره کښې محدیثین وائی چه ددے حدیث سند مکذوب دے-

بل حدیث هم دنعیم بن حماد په کتاب الفتن کښې په حدیث نمبر۹۸۷ باندے

مروي دے او مستدرک نه هم دا حدیث په حدیث نمبر۸۶۷۳ باندے نقل دے،دا

حدیث هم عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده د سند نه مروي دے په دے حدیث کښې د ذی قعده او محرم وغیره ذکر نه دے شوے او نه په کښې د قبائلو د ګروه بندئ ذکر شوے د دے حدیث حاصل دا دے چه **یحج الناس معا یعرفون معا** چه خلق به حج یو ځائے کوي او یو ځائے به په عرفه کښې وقوف کوی دا کار به بغیر د امام کوی ،**بینماهم بمنیٰ** دے دوران کښې به دوي په منیٰ کښې وی-اذا اخذهم کاالکلب ددی په مینځ کښې به جنګ د یو داسے مصیبت په شکل کښې راشي لکه څنګه چه د سپی په چیچلو سره مصیبت راځي،لکه څنګه چه سپئ څوک وچیچی یا بل سپئ وچیچی او هغه بیماري ډیره زر خوریږي دغه شان په تیزئ سره به فساد شروع شي او قبائل به خپل منځ کښې په یو بل حملے وکړي او د یو بل وینے به توي کړي ، نو هغوي به یو داسے سړي خوا له راشي چه په دے وخت کښې به د ټولو خلقو بهتر وی-ددے حدیث سند ته هم محدیثینو متروک او ساقط وائي-

دریم حدیث هم نعیم بن حماد په کتاب الفتن کښې په حدیث نمبر ۹۹۳باندے دعبدالله بن عمرو بن عاص ﷛ نه نقل کړے دے،د دے حدیث سند د مخکښې دوو حدیثو په مقابله کښې لږ بهتر دے،مګر دا حدیث هم د څه راویانو په وجه ضعیف دے-

د دے حدیث په نظر که څوک دا دلیل وائي چه په کوم کال په منیٰ کښې خون ریزي کیږي دغه کال به مهدي له خلق راځي او دغه کال به بیعت کیږي, ځکه چه په حدیث کښې ټوله واقعه تفصیل سره ذکر شوے ده مګر په دے حدیث کښې اختلاف دے،ځکه چه په ډیر احادیثو کښې مختلف واقعات یو ځائے ذکر شوي دي او په دے کښې په ظاهر کښې یو بل پسے نزدے ښکاري ،خو اصل کښې داسے نه ده بلکه په دے ډیر کلونو فاصله ده په دے حدیث کښې هم دغه وقفه مطلب کیدے شي-

دویمه خبره:بغیر د امام حج کولو مطلب؟

د حدیث د سبق نه معلومیږي چه خلق به بغیرد امام حج کوی دا به مسلسل وي چه خلق به څوکاله بغیر د امام حج کوي-

دامام نه مطلب هغه سړے دے چه په هغه د ټولے دنیا مسلمانان یا ډیر مسلمانان متفق وي او هغه د مسلمانانو دمونځ روژے ،حدود و قصاص او نورو دیني احکاماتو سره سره د جهاد او قتال وغیره امور هم سنبهالوي-د تیرو سلو کالو راسے داسے امام نششته،بلکه مسلمانان په خپل منځ کښې بے اتفاقه او په جنګ جګړو کښې اخته دي-

لکه څنګه چه حضرت ابوبکر﷛ اوحضرت علي﷛ نبی کریم ﷺ د حج امامان جوړ کړی او لیږلي وو او د دوي په نګرانئ کښې معاهدے شوے وے او د حج ارکان به ادا کیدل او دا مسلسل د هغه وخت نه د خلیفه یا د سلطان په نګرانئ کښې اداکولے شي-موجوده دور کښې اګر چه د سعودي عرب حکومت

دے او هغوي د دے د انتظامی امور و د پاره دحج وزارت جوړ کړے دے،او د ډیر فسق و فجور باوجود هم د امت علما دا برداشت کوي،مګر

جزيرة العرب کښې د امريکي،او کفري افوج د راتلو نه پس د يهود سره تعلقات، د عرب اسلامي ملکونو خلاف روانه لشکر کشي کښې مجرمانه خاموشي او بلادالحرمين کښې بے حيائی،بتان لګول، علمائے کرام بے ګناه قيد وبند کښې اچول او نور ډيرحرام کارونه حلالول، د دے په وجه وس د شريعت په رڼا کښې ددوی حيثيت ديوپه زور راغلے ظالم حکمران دے،د ته په شريعت کښې خليفه يا امام نشي وئيلے او نه ورته عادل سلطان وئيلے شي-

او د حج او عمرے په انتظاماتو کښې د شرعی امورو خلاف ورزی،حجيانو نو مختلف ټيکسونه اخستل او بغيرضرورت پابنديانے لګولو په وجه وس دوی ته مجلس منتظمه وئيل هم صحيح نه دی- نو په دے حديث کښې ذکرکړے شوے ټولے نخښے په نظر راځی او نور روايات هم د دے حديث تائيد کوي،

دغه شان دډيرو صحيح،حسن او ضعيف احاديثو په رڼا کښې مونږ وئيلو شو چه د صحيح مسلم په روايت کښې د کفري فوځونو دعراق او شام محاصرے نشاني پورا شوه-دطبراني روايت کښې ايران عراق جنګ،دے نه پس عراق او کويت جنګ او بيا د اقوام متحده د ارکان له طرف نه دعراق سره اقتصادي پابندئ هم ولګولې شوے-کتاب الفتن نعيم بن حماد په نظر کښې دخراسان نه د تورو جنډوراتلل او عراق کښې جنګ کول بيا شام کښې د جنګونو سلسله د نه پس د تورو جنډو د زيړو جنډو سره جنګ او بيا د تورو جنډو خپل منځ کښې جنګ کول او دغه شان د اهل يمن د جزيرة العرب نه ويستل او بيا په هغوي جنګ راوستل او فلسطين کښې د يهودو تعداد او غلبه د اټول علامتونه،دقبائلو خپل منځ کښې دجنګ وجه وګرزيده او د خليج ملکونو خپل منځ کښې جنګ جګړے او خپل منځ کښې يو بل باندے پابنديانے لګول او بلاد الحرمين کښې د سعودی خاندان خپل منځ سياسي شخړے اوخپل منځ کښې جګړے وغيره امور ديو لوئے بدلون علامت دے-

د شاه عبدالله د مرګ نه مخکښې لړ اختلافات او بيا د هغه د مرګ نه پس معتب بن عبدالله بندي کول او محمد بن نائف ولي عهد او محمد بن سلمان نائب ولي عهد جوړول او بيا محمد بن نائف لرکول او محمد بن سلمان ته د ملک ټول معاملات حواله کول سياسي توګه باندے شاهي خاندان کښې

دشخړو د بنیاد ښکاره علامت دے او په دے وخت ایرانی ،لبناني او شیعیه حاجیانو د اهل سنت دحاجیانو سره په منیٰ کښې جنګ کول او دے کال د کعبے په حدودو کښې یو لوئے کرین راغورزیدل او په سونو حاجیانو په وینو بیت الله سور کیدل د دے روایت په سند کښ موجوده ضعف خو نه شی ختمولے ،لیکن د عبارت تحسین ضرور کوي که دا علامت پورا شي او په دے دوران کښې دامام مهدي د بیعت دپاره علمائے کرام تشریف راوړي او د امام مهدي بیعت وشي نو مونږ وئیلے شو چه د حدیث د متن په اعتبارسره د دلیل ووړ دے،خو د وس نه دا بنیاد جوړول دا وئیل چه د امام مهدي ظهور به کیږي او دغه کال به منیٰ خون ریزي کیږي او په دغه کال به خلق بغیر د امام نه حج کوي او دغه کال به د بادشاه مرګ راځي او په دغه کال به د قبائلو منځ کښې جنګ کیږي او په دغه کال به د امام مهدي په لاس بیعت کیږي- دا استدلال کول په ظاهره ګران ښکاري-

دا د مهدي دا راتلو علامت دے چه په منیٰ کښې به خون ریزي کیږي او په دغه کال به بیعت کیږي او په دغه کال به بغیرد امام حج کیږي- دا خبرے اخستل مشکل نه دی امام هغه وی چا سره چه خلق ملګري وي لکه څنګه چه ابوبکرؓ امام وو نبی کریمﷺ هغه دحج امام جوړ کړو او ولیږلو ئي نو د هغه په امامت کښ نګرانی وشوه او د هغه په امامت کښې حج کیدو نو موجوده وخت کښې اګر چه د حج وزارت دے نو هغه آیا شرعی امام دے ،آیا شرعی خلیفه دے یا شرعی اعتبار سره ېغه ته مونږ خلیفه یا امام وئیلے شو په دغه وجه دا حدیث اخستل او دا حدیث په دلیل سره پیش کول چه دا د امام مهدي د راتلو علامت دے دا د مهدی د راتلو علامت نه دے د اما مهدی د راتلو نه به مخکښې د صحیح احادیثو په تناظر کښې یا حسن یا ضعیف احادیثو په تناظر کښې دا علامات خو به مونږ واخلو-والله اعلم بالصواب

**سوال(۱۵):** دامام مهدي نصرت کولو واله مدد کونکي خلق به څوک وی او په موجوده وخت کښې به د دوي بنيادي خصوصيات به څه وي؟

جواب: دجواب نه مخکښې د تمهيد په طور يو څو خبرے پيژندل ضروري دي:

اوله خبره:د احاديث مبارکو نه ثابت دی چه د امام مهدي کمک کولو واله تعلق به قيامت ته نزدے د بنو عباس د تورو جهنډو نه ورستو دخراسان د تورو جهنډو واله نه وي او د نعيم بن حماد په کتاب الفتن کښې ددے جهنډو عراق او کوفے طرف ته تلل ، بيا ددے جهنډو شام طرف ته تلل او بيا بقية العرقد يعني جنت البقيع طرف ته د تلو تذکره هم بعضو رواياتو کښې شته دے-

دويمه خبره:قيامت ته نزدے د دے تورو جهنډو عراق او شام کښې يو بل سره سخت اختلافات شروع شي،او بيا به د دوي په منځ کښې جنګ وشي-

دريمه خبره: د يو روايت نه معلوميږي چه کله تورو جهنډو واله خپل منځ کښې جنګ وکړي نو په د دوران کښې به د امام مهدي په دے دواړو کښې چا سره هم تعلق نه ساتي-د مخکښنی سوالونو جوابونو او موجوده حالاتو په نظر کښې که مونږ وګورو نو د عراق او شام د هالاتو نه پس وس د امام مهدي راتګ نزدے ښکاري-د دے سوال جواب په حقله زما عرض دادے که دا وخت شام او عراق باندے نظر وکړے نو دا معلوميږی چه د افغان په زمکه د عرب مجاہدين د سعودي عرب او نورو ملکونو نه راغلی او امريکے هغوي ته د روس خلاف جهاد کولو اجازت ورکړو او خپلو ملکونو هم هغوي له اجازت ورکړو او افغانستان ته راغلل او دلته د روس خلاف ئي جهاد وکړو او فتح ئي حاصل کړه-

ايران کښې د خمينی انقلاب نه پس عراق ايران جنګ شروع شو،نو

عرب د امريکے په حمايت سره د ايران خلاف لس کاله وجنګيدل،په دے جنګ کښې ايران عراق دواړو سره مسلمان او غيرو ملکونو او د هغوي عوامو يو ځائے دا جنګ وکړو-

۱۹۸۸ءکښې چه ایران عراق جنگ ختم شو نو په کال د افغانستان جنګ هم ختم شو،دے نه پس عراق په کویت حمله وکړه او بیا عرب ملکونو د عراق سره بائیکاټ وکړو او د اقوام متحده امن فوځ راغلو اود عراق فوځ ئي دکویت نه بهر کړو او بیا د یمن نه علاوه ټولے دنیا،په عراق باندے اقتصاد او معیشت پابندی ولګوله-په دا رنګ افغانستان کښې هم د مجاهدینو په منځ کښې جنګ شروع شو-عرب مجاہدین که څه د مخالفو ډلو سره یو ځائے شو او بعضو جنګ کولو انکار وکړو او خپل ملکونو ته لاړل،په دے کښې اسامه بن لادن هم وو-

شیخ اسامه بن لادن به که سعودي عرب ته تلو او کله به واپس راتلو،په دے دوران کښې کله چه جزیرة العرب کفار فوځونه راغلل،نو هغه اخرجوالیہود والنصاریٰ من جزیرة العرب واله فتویٰ په حق کښې آواز اوچت کوو، دے نه پس په هغه پابندي ولګیدله او هلته نه افغانستان ته راغے او بیا د هلته نه سوډان ته لاړو-سوډان نه واپس افغانستان ته راغے،په دے وخت د طالبانو حکومت جوړ شو،نو هغه د طالبانو دامیر المؤمنین په لاس بیعت وکړو-

۱۱ستمبر ۲۰۰۱ء واقعات وشو،دےنه پس امرپه افغانستان حمله وکړه-دلته مونږ

ګورو چه امریکے په افغانستان حمله ولے وکړه د دے څه وجه وه؟ ښکاره خبره دا چه ملا عمر مجاهد اسامه بن لادن امریکے ته حواله کولو نه انکار وکړو یعنی د سپینو جهنډو امیر د تورو جهنډو امیر دکفر سردار امریکے ته حوله کولو نه انکار وکړو نو امریکے د تورو سره سپینو جهنډو واله باندے هم حمله وکړه-

وس دلته د دے سوال کولو حاجت نشته چه حدیث کښې د تورو جهنډو

ذکر دے او د افغانستان د مجاهدینو سپینے جهنډے دی،نو د امریکے حملے نه معلومه شوه چه د دواړو جهنډو مقصد یو دے،هم په دغه وجه امریکے د تورو جهنډو د پاره د سپینو جهډو حکومت ختم کړو اوفغانی طالبانو د دے فرقڅه پرواه ونه کړه بلکه د هغوی بیعت ئي قبول کړے وو او په دغه وجه ئي خپل یو حصه ګڼله او د دے د پاره ئي د شلو کاله جنګ خوښ کړو،لیکن په خپل بیعت کښ وسیدو واله تورو جهنډو امیر ئي امریکے ته حواله نه

کړو-ښکاره خبره وه چه دواړه د نظریه جهاد په ذریعه دپه زمکه مخ باندے اسلامی احکامات بطور قانون نافذکول غوختل،ځکه دواړو یو مقصد او منزل وو-

۲۰۰۳ءکښې چه په عراق حمله وشوه نو افغانستا ن ته راغلی عرب مجاہدین عراق ته لاړل او د ابو مصعب الزقاوی په قیادت کښې دامریکے خلاف جہاد شروع کړو،د ابو مصعب الزقاوی د شهادت نه پس ابو عمرو المهاجر او ابو حمزه المهاجر یو بل پسے د زرقاویؒ نائب جوړ شول او هغوي هلته"الدولۃ الاسلامیہ"بنیاد کیښود-ددے دواړو د شهادت نه پس ابو بکر البغدادی دا تنظیم په یو بل عرض استعمال کړو او په آخره کښې د عراق او شام د تورو جهنډو په منځ کښې اختلافات شروع شول-

د تورو جهنډو په منځ کښں اختلافات باره کښې روایات او آثار و ذکر تفصیل سره موجود دے چه د هغے نه معلومیږی چه په تورو جهنډو کښں به یو قسم د ګمراهے خورولو حصه اخلی او دویم قسم تورے جهنډے به هدایت یافته وی-

په دے وجه څنګه چه په نورو کارونو کښې حق او باطل پیژندل دقرآن او سنت په رڼا کښې او د شریعت مطهره باندے سره عمل کولو باندے دی،چه کوم سړے یا تنظیم داسے وی، نو هغه به په حق وی او کوم چه دے نه خلاف وي ،حغه به باطل وی- نو ځکه په موجوده وخت کښې صرف تورے جهنډے واله سړے یا تنظیم د هغه د حق کیدو دپاره کافی نه دی،بلکه د دے سره سره د هق ملګرتیا او مکمل طور د شریعت پابندی کولو او د کفر سره جنګ کول ضروری دی-

**سوال:( ۱۶):**آیا په مختلف روایاتو کښې د امام مهدی مدد کولو واله کښې شام او یمن د لښکرو شته یا دے نه علاوه د نورو علاقو ذکر هم پکښې شته؟

جواب:د امام مهدی کمک ته راتلو واله باره کښې مختلف روایات دی، دحضرت علیرضی اللہ عنہ په روایت کښې دی چه د امام مهدی دکمک د پاره به د یمن عدن ابین نه به ۱۵۰۰۰ خلق راځی- او دوی به ځان سره کړی او امام مهدی به دبنو کلب سره اول جنګ کوی-چه کله د امام مهدی مخالف لښکر د بیدا په میدان کښې په زمکه دننه شی او د امام مهدی مستقل حکومت جوړ شی،نو دے نه پس به د امام مهدی د مدد کولو د پاره عراق نه عصائب الاعراق،مصر نه جنائب مصر،شام نه ابدال االشام او او د نورے دنیا د علاقو باره کښې روایت کښې فرمائی:**من کل بلد صالح** تذکره ده یعنی د ہر یو علاقے نه صالح خلق به شرکت کو(۷۰) زره خلق راځی او د بنو اسحاق نه مراد پښتانه دی چه د حضرت ابراہیم علیہ السلام د نسل نه دی-والله اعلم باالصواب-لیکن دا ټولے خبرے چه د علمائے سبعه باره کښې دی او د بنو اسحاق باره کښې دی،دا تحقیقی نه دیتقدیری دی ممکن دا چه دے نه مراد افغان طالبان وی،کیدے نور خلق وی-والله اعلم بالصواب

**سوال(۱۷) :**امام مهد ی به په کومه زمانه کښې راځی؟

جواب:امام مهدی به د قیامت سره نزدے زمانه کښې د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم په نسل کښې تشریف راوړی-

**سوال:(۱۸):**لامام مهدی پیژندګلو به څنګه کیږی؟

جواب: د نبی کریم ﷺ  **د** پیشن ګویانو په رڼا کښې د امام مهدی شخصی علامات یعنی د هغه نوم نسب اودهغه تعارف او دهغه شکل و صورت او اوصافو تذکره څه داسے شوے:

عن عبد الله قال لا تذهب الدنیا حتیٰ یملک العرب رجل من اهل بیتی یواطئی اسمه اسمی-ترجمه حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دے هغه فرمائی چه دنیا هغه وخت پورے نه ختمیږی چه دعربو یو کس به بادشاه شی چه زما د اهل بیت نه به وی نوم به ئی هم زما د نوم په نوم وی-

[سنن الترمذی،باب ما جاء فی المہدی،رقم:۲۲۳۰،ج ۴ ص ۵۷]

په س حدیث کښې د یواطؤ مطلب دے موافقت،کله څنګه چه د الله رب العزت فرمان دے:لیواطؤاعدة ما حرم الله"مواطاة"موافقت ته وائی-

ددے نه معلوم شو چه د امام مهدی نوم به د حضرت محمد ﷺ د نوم په شان وی بعضے خلق ابو مسل الخراسانی او بعضے خلق عمر بن عبدالعزیز ته امام مهدي وائی نو دا خبره صحیح نه ده ځکه چه حقیقي مهدی به هغه وی چه په آخری زمانه کښې به په عرب کښې پیدا کیږي، دهغه نوم به محمد وی،په بل حدیث کښې حضرت ابو ہریره رضی الله عنه فرمائی :**لو لم یبق من الدنیا الا یوم الطول الله ذالک یوم حتیٰ یلی- ترجمہ**:کہ د دنیا پہ ختمیدو کښې صرف یو ورح پاتے شی نو الله تعالی به دا یو ورځ اوږده کړی او زما په اهل بیت کښ به یو سړے په عربو حاکم جوړ کړی-

[سنن الترمذی،ج۴،ص۵۷]

په یو بل حدیث کښې د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دے :نظرالی انبه الحسن فقال:ان بنی هذا سید کماسماه النبی،وسیخرج من صلبه رجل یشبهه فی الخُلق ولا یشبهه فی الخَلق-حضرت علی رضی الله عنه خپل زوئی حضرت حسن رضی الله عنه ولیدواو

وے فرمائیل چه زما دا زوئی به سر وی لکه چه نبي کریمﷺ دده باره کښې پشن گوئی کړے ده،او قریب ده چہ دده ملا نه به یو سړے پیدا کیږي چه د هغه نوم به د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دنوم په نوم وی،هغه به په اخلاقو کښې د نبی کریم صلی علیه وسلم په شان وی لیکن پیدائشی صفاتو کښې به د نبي کریم صلي الله علیه وسلم په شکل و صورت کښې نه وی یعنی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مخ مبارک سپین وو،لیکن د امام مهدی مخ مبارک به سپین نه وی او نبی کریم صلی الله علیه وسلم قد مبارک دنگ وو لیکن امام مهدی به د قد په اعتبار سره دنگ نه وی او دغه شان نور صفات کښې مثلاً وغیره به هم د امام مهدی د نبی کریم صلی الله علیہ وسلم په شان نه وی-د حضرت علیؓ نه یو روایت کښې دی:**لو لم یبق من الدهرالا یوم لبعث الله من اهل بیتی ،یملئها قسطا وعدلاً کما ملئت جوارکه** :که ته یو ورځ هم پاتے شی نو الله تعالی به زما په اهل بیت کښې ضرور یو سړے را پیدا کړی چه دنیا به داسے عدل او انصاف راولی لکه چه څنګه د ظلم زیاتی نه ډکه شوے وه-

حضرت سعید بن مسیب ؓ نه روایت دے چه مونږ حضرت ام سلمی رضی الله عنها سره ناست وو په دے دوران کښې د امام مهدی ذکر شروع شو نو ام سلمی رضی الله عنها وفرمائیل حدیث:المهدی من ولد فاطمۃ چه امام مهدی به حضرت فاطمه رضی الله عنها د اولاد نه وی-حضرت بن مالک رضی الله عنه نه روایت دے چه مونږ د نبی کریم صلی الله علیہ وسلم نه اوریدلی دی هغه صلی الله علیه وسلم فرمائی:نحن ولد عبدالمطلب سادات اهل الجنۃ : انا وحمزه و علی و جعفر وحسن و حسین و المهدی چه مونږ د عبدالمطلب اولاد د جنت سرداران یو یعنی زه او حضرت حمزہؓ،حضرت علیؓ،حضرت جعفرؓ او حضرت حسنؓ او حضرت حسینؓ او حضرت امام مهدیؓ-

حضرت ابو سعید خدریؓ نه روایت دے چه نبی کریمﷺ اوفرمائیل المهدی منی یعنی امام مهدی به زما د نسل نه وی-"منی"کښې دے خبرے طرف ته اشاره ده چه امام مهدی به زما په شان د قرآن و حدیث د نفاذ کوشش کوی او

امام مهدی به زما په شان جهاد کوی او د امام مهدي به زما په شان ملگری وی لکه څنګه چه زما صحابهؓ دی،لکه څنګه چه صحابهؓ په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندے ځان قربانوو دغه شان به د امام مهدی انصار به هم په خپل امیر باندے قربانوی او په "منی" کښې دے طرف ته اشاره ده چه کوم سړے د امام مهدی سره سومره زیات مشابهت لری، هغه وومره به نبی کریم صلی الله علیہ وسلم ته نزدے وی ،او مشابهت د امام مهدی د راتلو نه مخکښې پیدا کیدو نوم دے،وس چه څوک سومره زیات د امت او درد په خپله سینه کق لری، او څومره زیات د خلافت راشده حضراتِ اہل بیت حکومت قائمول او د سنتِ رسولﷺ د نفاذ کوشش کوی، دومره زیات به د امام مهدی د راتلو نه پس به په هغه به دا صفات پیدا شي-

**سوال(۱۹):**امام مهدی او د هغه ممدګار او د حضرت طالوت د انصارو په منځ کښې تذکره د نصوص نه ثابت دی؟

جواب:په یو صحیح حدیث کښې د امام مهدی د انصارو او دحضرت طالوت د انصارو فضائل او ددوی په خپل منځ کښ مشابهت ذکر راغلے دے ، چه په هغے کښ فرمائیلی دی-

**لا یستو حشون الی احد،ولا یفرحون باحد،یدخل فیهم علی عدة اصحاب بدر لم یسبقهم الاولون ولا یدرکهم الاخرون علی عدد اصحاب طالوت الذین جاوز وا معه النهر للحاکم،رقم:ج ۴،ص۵۹۶** امام مهدی داملګری به نه د یو ناآشنا سړی د راتول نه نامانوس کیږی او نه به د چا په راتلو خوشحالیږی، دا به دامام مهدی سره د بدری صحابو په شان په تعداد کښې یو شان وی دے جماعت به یو خاص فضیلت وی،چه نه به د دوی نه مخښ دا دضیلت چاته ملاوشوے وي او نه به ددے نه وروستو چا ته حاصل شی-

او حضرت طالوت فرمائیلی دی:**فمن شرب منه فلیس منی و من لم یطمعه فانه منی** چه چا د دے دریاب نه اوبه ونه څکلے هغه به ځما ملګری وی او چا چه وڅکلے هغه ځما ملګری نه دی یعنی څوک چه د امیر اطاعت کوی نو دهغه نسبت د امیر سره وی او څوک چه د امیر اطاعت نه کوی هغه د امیر سره څه نسبت نه لری-ددے نه معلومه شوه چه امام مهدی به د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دسنتوپه مکمل توګه باندے تابعدار وی-

**سوال(۲۰):**د امام مهدی د مخ،تندی او د پوزے ذکر-

جواب:**أجل الجبهه:**دامام مهدی تندے به کشاده (غټ) وی،دغټ(کشاده) مطلب په بل حدیث **أقبل** سره راغلے دے او بعضو کښ أجبه یعنی ناطئے الجبحهه الفاظ راغلی دی او د دے ټولو لفظونو تشریح دا ده چه د هغه تندے به بهر طرفته راوتے او غټ وی او دا غټوالے به د ویختونشوالی د وجے وی یعنی مخے ته به ئي ویخته نه وی د دے وجے به تندے غټ ښکاری-

**أقنی الانف:**د امام مهدی پوزه به اوږده وی او بل روایت کښې **اشم** لفظ راغلے دے ــددے دواړو لفظونو ملاؤلو او دے نه تطبیق نه **معلومیږی** چه د امام مهدی پوزه به درمیانه وی نه به ډیره نرے وی او نه به ډیره پلنه وی،نه به چیته او خکته وی او نه به چپکی وی یعنی منځ کښې به وی-

**سوال(۲۱):**دامام مهدی دحکومت دوخت ذکر او په مختلفو روایاتو کښ د پیشن ګویانو په منځ کښې تطبیق به څنګه وی؟

جواب:حدیث کښې راغلی دی:**یملک سبع سنین** اؤوه کاله پورے به په ټوله دنیا حکومت کوی او د خلافت راشده نظام به قائموی-حضرت ابو سعید خدری رضی اللہ عنہ نه روایت دے ذکررسول بلاء یصیب هذه الامة نبی کریم صلی علیه وسلم د یو بلا او مصیبت تذکره وکړه چه دے امت ته به رسی-لا یجد الرجل ملجا یلجا الیه من ظلم د ظلم نه به د بچکیدو څه ځائے نه وی دے دوران فیبعث الله رجلا من اهل عترتی و اہل بیتی الله تعالی به دے دوران کښې زما د اهل بیت نه او زما د خاص عترت او نسل نه یو سړے راوچت کړی-**فی ملا الارض فسطا و عدلا کما ملئت ظلما و جورا**امام مهدی چه راشی نو د دنیا ظلم و زیاتے به په عدل و انصاف کښې بدل کړی-**یرضی عنه ساکن السماء و ساکن الارض** د زمکے او آسمان والا بہ د هغه خوشحاله وی د هغه په زمانه کښ به **لا تدع السماء من قطرتها شیئاًالا ارسلته مدرارا** آسمان به باران نه ودروی بلکه مسلسل به وریږی ولا تدع الارض من نباتها شیئاًالا اخرجته او زمکه به میوے،فصلونه او زرعونه به نه ودروی بلکه راوباسی به ئي حتی یتمنا الاحیاءالاموات تردے چه ژوندی خلق سره نعمتونه دومره زیات وی چه هغوی به ارمان کوی چه ځمونږ وفات مړه شوی خپلوان هم ژوندی وے چه د امام مهدی دوخت د حکومت د نعمتونه نه فائدے اخستے وے-

**سوال(۲۲):**دامام مهدی د پیدائش او عمر باره کښې ډیر روایاتو به تطبیق څنګه وی؟

جواب:(ا)یو روایت کښې دی چه امام مهدی به اصل کښ تعلق د یمن نه ون او نورو روایاتو کښې دی چه امام مهدی تعلق به د کرغه کلی نه وی، په یو بل روایت کښې دی چه امام مهدی تعلق به د تهامه سره وی او دنورو څه روایتونو نه معلومیږي چه امام مهدی به په مکه یا مدینه کښې پیدا کیږی او دغه شان په څه روایاتو کښ د امام مهدی تعلق د خراسان د تورو جهنډو سره د تعلق تذکره ده او د قریشی،حسنی او حسینی کیدو هم ذکر شته-

او دے روایاتو کښ تطبیق ښکاره دے چه د امام مهدی آبائی وطن یمن دے،چه جغرافیائی اعتبار سره تهامه کښ واقع دے،هلته د یو کلی کرغه نه به د امام مهدی پلار نیکه حجاز ته په هجرت راغلی وی او دلته مکه کښ به امام مهدی پیدا کیږی یا په مدینه کښ به دے پیدا کیږی او حجاز کښ به وړوکوالے تیروی،اود خراسان د تورو جهنډو سره به دده تعلق څکه وي چه د جهاد د پاره به دے خراسان ته ځی-

کرغه کلے د یمن د ملک صوبهٔریمه،او د ډیسټرکټ:بیت الفقیه،ښار عزلة الحوادلکښ په تهامه کښ په مشرق کښ پروت دے ،دا کلے جبل قهوه او جبل جهیزان د غریزو سلسلو په منځ کښ پروت دے-دا کلے په پینځه وړو قصبو باندے مشتمل دے چه په دے کښ اظهرة،مکراع الجروة،هاجر او مرحلہ پکښ دی دلته تهامی لهجے عربی وئیلے شي، د کرغہ نوم کلی ذکر امام ابو بکر المقری په خپل کتاب معجم الشیوخ او ابن عدی په الکامل او الکنجی په البیان کښ امام ابو نعیم نه نقل کړے ده-د سند په لحاظ سره محدیثینودے روایت ته ضعیف وئیلے دے-د نورو صحیح روایتونو سره د عرض نہ لرلو پہ وجه که دا ووئیلے شی چه د امام مهدی د صحیح روایاتو د ذکر کړے شوې علاماتو سره سره یو به پکښ دا علامت هم وي-چہ د امام مہدئ د راتلو نہ مخکښ او د امان مهدي د راتلو نه مخکښ او د راتلو په وخت کښ د هغه تائید ته به نور هم وده ملاؤ شی-

دامام مهدی په مکه مکرمه کښ د پیداکیدو باره کښ او دامام مهدی بیا یمن ته جلا وطن کولو ذکر امامنعین بن حماد په کتاب الفتن کښ کړے دے:**عن ابن رستم عن ابیه قال المهدی رجل ازج ابلج اعین یجئ من الحجاز حتی یستوی علی منبر دمشق و هوا ابن ثمان عشرة سنة**-حضرت ابن رستم خپل پلار نه نقل کوی چه د امام مهدی د سترګو وروځے(بهنویں)ګول اوږدے او یو بل نه جدا وی او سرګتے به ئي غټے وی،د حجاز نه به د اتلسو کاله عمر کښ راشی او د دمشق په جامع جماعت(مسجد) کښ به خطبه ورکړی-

نوټ:په دے روایت کښ د اتلسو کالو په عمر کیدل او جامع مسجد دمشق کښ خطبه ورکول دا کیدے شی چه د راوی وهم وی ځکه چه د بیعت نه پس به امام مهدی دمشق ته ځی او خطبه به ورکوی او په دغه وخت به د هغه عمرڅلویښت٤٠کاله وی-

امام مهدی۳۰ یا ۴۰کاله په عمر کښ ددین د خدمت د پاره بطور داعی ووځئ او دے نه پس به هغه خپل اصلي نوم محمد په ځائے په یو بل نوم مشهور شی-

یو بل روایت کښ د هجرت او د ملک نه د ویستو ذکر دے:**قال الولید:یلی المهدی فیظهر عدله ثم یموت،ثم یلی بعده من اهل بیته من یعدل ثم یلی منه من یجورو یسیئ حتی ینتهی الی رجل منه فیجلیالیمن الی الیمن ثم یسیرون الیه فیقتولونه ویولون علیهم رجا من قریش یقال له محمد،قال بعض العلماء:انه من الیمن ذالک الیمانی تکون الملاحم(**رواه نعیم بن حمادفی کتابه الفتن)

ولید وائي چه یو سړی ته به حکومت ملاؤ شی چه د هغه په حکومت کښ به انصاف وی لیکن هغه به وفات شی نو د هغه د نسل نه به یو بل سړے راشی چه عدل او انصاف به کوی او د دے نه پس به بیا داسے بادشاهان راشی چه ظلمونه به کوی،تردے چه یو کس ته به حکومت ملاؤ شی نو اهل یمن به د یمن طرفته ووباس(جلا وطن کړی) او هلته به لاړ شی او د یمن خلقو سره به جنګ وکړی او د دوی خلاف به د مسلمانانو یو امیر وي چه د

قريشو نه به وي د هغه نوم به محمد وي  بعض علما وائي  دا به د يمن هغه سړے وي چه  د ده په لاس به ملاحم کيږي او دا به امام مهدي وي-

د حضرت على بن ابى طالب نه روايت دے چه امام مهدي به د ٣٠يا ٤٠ كاله په عمر كښې ښكاره شي ليكن د دعوت په سلسله كښې به  د نوي او اصلاحي كار د پاره خلقو ته به په دغه عمر كښي دعوت وركوي-د بيعت نه مخكښې به په يو بل نوم ظاهر شي :**فيعلو ذكره و  يظهر امره** د ده نوم به ښه مشهور شي او د مهدويت به ښه خوره ونه(پرچار)كوي، دغه شان به خلق د امام مهدي طرف ته  متوجے شي-

**سوال(۲۳):**دامام مهدي باره کي په هره زمانه کښې دا خبره اوريدليکيږی چه هغه به په دے دور کښې راځي او دا خبره د پخواه نه راروانه دا نوځکه د سفيان ثوري نه چا تپوس وکړو چه امام مهدي څوک دے؟ او کله به راځي؟ دغه شان غلط نظرياتو خلق هره زمانه کښې دراتلو دعوه کوي يا نور خلق د هغه له طرف نه د امام مهدي کيدو خورونے(ترويج) کوی، د دے وجه د هر زمانے علما کرامو په دے موضو ع د ډير بحث کولو نه منع کړے ده،نو ځکه مناسب داده چه ددين نور کارونه په اهتمام سره وکړے شي او په دے موضوع صرف عقيدے دانداز پورے يقين ولرلے شي،دے باره کښې ستاسو څه خيال دے؟

جواب:تمهيد:اولني خبره داده چه دامام مهدي راتګ دقيامت د علاماتو نه دے او علامات قيامت نه بعضے وړے او بعضے غټے دی،او د امام مهدي راتګ په دے دليل دےچه وس واړه علامات ختم شوي دي او غټ علامات شروع شوی دی-په دے غټو علاماتو کښې د دجا راتګ او د عيسیٰ عليه السلام نزول دے،چه د امام مهدي په وخت کښې به وي-

دامام مهدي دور باره کښې د ابوهريرةؓ حديث دے:**يبايع لرجل مابين الرکن و المقام،ولن يستحل البيت الاهله،فاذااستحلوه،فلا تسئل عن هلکت العرب** د يو سړي به د رکن او مقام په منځ په بيت الله کښې به د هغه بيت کيږي دے نه پس به خپل خلق نه د بيت الله بے حرمتي وشي دے نه پس د عربو د هلاکت باره کښې تپوس مه کوه چه څومره زر به وي،په دے حديث کښې درې خبرے دي:

اولئ خبره:بيت الله کښې به د يو سړي بيعت وشي-دا واقعه ۱۴۰۰ھ ۲۱نومبر

۱۹۸۹ء د سحر مونځ له چه کله امام بيت الله کښې امامت ته مخکښې کيدو نوجهيمان نومے سړي محمد بن القحطانی رامخکښې کو او دا اعلان ئي وکووچه وس د امام مهدي زمانه ده،دا جهيمان دعتيبی نوم سړي اوښے (د ښځې ورور)وو،داسړے وسله په لاس سره د دوه سوو کسانو دجنازے به بهانه بيت الله شريف ته رادننه شوے وو-

محمد بن عبد الله قحطانی د شیخ ابن باز شاګرد وو، دده نوم مهمد بن عبدالله وو،نرے پوزه،غټ تندے او نور څه علامات د کښې موجود وو، د ده باره خلقو خوبونه هم لیدلی وو، ددے په وجه دے مهدی جوړ او پیش کړے شو-

دویمه خبره:چه ددے نه پس به د حرم خپل خلق به د حرم بے حرمتی وکړی-ددے مثال دسعودی حکومت اودهیئه کبار العلمای د طرف نه سعودی فوځ ته باقعده اجازت وشو،دے نه پس دوه هفتو پورے د مختلف ملکونو فوځ یو ځائے دحرم شریف نه ګیرچاپیر تاؤ(محاصره کرنا) شو،د بکتر بند ګاړو او د ټینکونو په ګولو سره ئي په حرم حمله وکړه-او دغه شان ډیر خلق مړه شو-

که علمائے کرام تلے وے او هغوي ئي په حکمت سره پوهه کړے وے او حکومت د دے علماؤ په ذریعه منع کړے وے،نو حرم شریف کښې به وینه نه وے توئ شوے او د غه شان د بیت الله شریف بے حرمتي به نه کیدے-

دریمه خبره:په حدیث کښې دی چه دے نه پس د عربودهلاکت تپوس مه کو!چه څومره زر به وی-کیدے شی دے باره کښې نبی کریمﷺ اشاره کړی چه دحرم خپل خلق به دحرم مخالفت و کړي-

دے باره کښې مونږصحیح احادیث وګورو،یو روایت کښې زینب بمت جحش ؓ فمائی چه نبی کریم ﷺ یو ورځ د خوب نه رابیدار شو،نو د پیغمبرﷺ مخ مبارک سر وو او هغوی ﷺ داکلمات وئیل:**لا الہ الا الله ویل للعرب!من سرقد اقترب،فتح الیوم من سد یاجوج ماجوج مثل هذه** عربوں دپاره دنزدې راروان شر ن هلاکت دې ،نبی کریم ﷺ خپل غټه او شهادت واله ګته اوچته کړه او اشاره ئي وکړه چه دومره وړوکې سورے په هغه دیوال کښې شوے دے چه د یاجوج ماجوج نه د بچ کیدو دپاره سکندرذوالقرنین جوړ کړے وو- بیا مخکښې ناست خلقو تپوس وکړو چه نیکان خلق موجود وی بیا به هم قیامت راځی نو نبیؐ ووفرمائیل:**اذا کثر الخبث** چه کله بدئ زیاتے شے-

دجهیمان واقعه ته چهو ګورو او حدیث ته وګورو،نو معلومه شوه چه د عربو د هلاکت بنیادی وجو نه به یوه غټه وجه دا وی چه کله د بیت الله بے حرمتي

وشي – **من شر قد اقترب** عربو د پاره هلاکت دے، نزدے راتلو واله شر نه ، اود شر نه مطب جنګونه دی،چې د هغے وضاحت د حضرت علیؓ د دے ارشاد نه کیږی: **لا یخرج المهدی حتی یقتل ثلث و یموت ثلث و یبقی ثلث** ترجمې:مهدی به هغه وخت پورے نپ راځي څه پورے چه یو ثلث به په خپل مرګ مړه شی او یو ثلث به قتل کړے شی او یو ثلث باقی پاتے شي-

د یو بل حدیث نه د دے جنګونو د زمانے پته لګي:**سععوذ بهذه البیت قوم لیس معهم عدد،ولا منعة،ینعث الیهم یجیش حتی اذا کانو بیداء من الارض خسف بهم**-دا حدیث دے،چې مختلفو کتابونو کښ د صحابو حضراتو نه نقل کړے شوي دي-

په دے حدیث کښې دا فرمائیلی دی چه د مهدی حقیقی به دا علامت وی چه د هغه سره به نه اسحه وی او نه به د هغه سره زیات تعداد خلق وی او نه به د هغه سره د بچاؤ څه سامان وی او هغه به بیت الله ته راشي او د هغه به بیعت وشی او بیا به په ټوله دنیا د هغه حکومت قائم شي-

پې دے باره کښې نور وضاحت د امام نعیم بن حماد د روایت نه کیږي فرمائي:**سیعوذ بمکة عائذ،فیقتل،ثم یمکث الناس برهة من دهرهم ،ثم یعوذ عائذ آخر، فا ن ادرکته،فلا تعزونه،فانه جیش الخسف**۔

په دے حدیث کښې څلور مختلف خبرے دي:

(۱)بیت الله ته به یو کس راشي پناه به واخلی،لیکن هغه به قتل کړے شی-نو

۱۹۸۹ءکښې یو سړے راغے او هغه د سحر په مونځ کښې دامام مهدی کیدو د پاره وینه توئیول شروع کړل دے نه پس هغه قتل کړے شو-

(۲)**ثم یمکث الناس برهة دهرهم**-بیا به څه وخت پورے په دغه زمانه کښې خلق ایثار شی،**ثم یعوذ عائذ آخر** بیا به یو بل سړے راځی-فا ن ادرکته ،فلا تعزونه که تاسو دغه زمانه بیاموندہ،نو ددے د مخالف لښکر سره مه کیږے، ځکه چه دغه به په زمکه کښې دننه کیدو واله لښکر وی- په دے حدیث کښې دی

**برهة من دهرهم** کښې برهة نه مطلب ځلويښتو پورے موده ده لکه څنګه بنی اسرائيل ځلويښت کاله په وادی "تيه" کښې وو-

يو روايت کښې دی چه د برهة اطلاق په ځلويښتو کالو باندے شوے دے،فرمائی چه يو سړی ځلويښتو کالو پورے ګناهونه کوی،بيا نيک عمل شروع کړی،نو الله تعالی د هغه اعمال قبلوی او د توبے توفيق ورکوی او هغه په جنت کښې دخلوی-او دغه شان ځلويښتو کالو د سړی عمر پوخ شی هم دغه وجه ده چه نبوت هم په ځلويښتو کالو په عمرکښې ملاويږي –

په دے تناظر کښې که وګورے،نو د بلوغت آخري عمر اتلس کاله دے او که دا اتلس کاله د نبي کريم صلی عليه وسلم د عمر مبارک نه منفی کړے نو پينځه ځلويښت کاله پاتے کيږي- ددے نه معلوميږی چه اول غير حقيقي مهدي نه پس د دويم حقيقی مهدی تقريباً پينځه ځلويښت کاله پس راتلل ممکن دي- ليکن دا تعين محض د ګمان او دتيارے د پاره دے قطعي او يقيني نه دے-

**سوال(۲۴):**۱۹۸۹کښې جهيمان تحريک ولے پيدا شو،ددے وخت حالات څنګه وو؟د لهيمان د تحريک نه پس د امام مهدی متعلق کارونو طرف ته د امت توجو او موجوده حالاتو کښ د جهيمان تحريک په وړاندے بوتلل او دے ته د امام مهدی د راتګ علامات وئيل ددے څه حقيقت دے او دے باره کښې ځمونږ ذمه داريانے څه دی؟

جواب:د لهيمان تحريک په وجه په حرم شريف کښې وينه تويده(خون ريزی)اود بيت الله بے حرمتی کولو سزازغملو بغير داسے په اسان نه وو،په حرم د بمبارئ په وخت کښې د عرب ملکونو خاموشی او داسلامي دنيا په دے حالاتو کښې څه حرکت نه کولو وبال(عذاب) به لازمي راتو ځکه دا واقعه د ټولو مسلمانانو د پاره عمومي او د عربو ملکونو د پاره خصوصي د هلاکت سبب-

ددے سزا ذکر په حديث شريف کښې شوے دے،فرمائي،**يبايع لرجل ما،ولن يستحل الحرم الا اہله ،فاذا استحلوه فلا تسئل عن ہلکت العرب**-يعنی حرم شريف کښې به د شريعت خلاف بيعت وشی ،ليکن دا په درست طريقے د حل کولو په ځائے ددے په بنياد سره دبيت الله بے حرمتي د دے د خپلو خلقو کيدل او چه کله دا بے حرمتي وکړي،نو ددے نه پس دعربو د ہلاکت تپوس مه کوه!

**جهيمان تحريک د غلطئ اولئ وجه:**

ددے غلطئ اوله وجه په هغه وخت کښې د علماؤ دکتاب الفتن په احاديثو د اهم خبرو يعنی د مہدی د راتګ،ددجال ده فتنے او عيسیٰ عليه السلام د نزول د موضوع نه بے پروائی وه او خپل شاګرد ان ددے د تهقيق او تطبيق نه خبرول،که په داګه وخت کښې د سعودی عرب علمائے کرامو خپل شاګردان د امام مهدی باره کښې د اهم مسئلو نه خبر کړے وے چه دامام مهدي دپاره صحيح ،حسن او ضعيف احاديثو په رڼا کښې څنګه تطبيقی انداز کښې کار کول ضروری دے،کله څنګه چه د دين د نورو احکامو د پاره ضروری وی او هغوي ئي په دے خبره پوئيولے چه د امام مهدی راتګ به نه مکمل تکوينی وی او چه بالکل به څه کول نه غواړي او په دے انتظار کښې به وی چه امام مهدی سمدستي پخپله راځی او نه دا تشريعي مسئله ده چه مونږ

د خپل طرف نه  په یو کس باندے دا علامات منطبق کړو او هغه مهدي جوړ کړو،حالانکه نه لا وسه پورے علامات زمانه او نه سیاسي علامات پورا شوی او نه علامات تکویني او نه تشریعي پورا شوي دي او نه په دے مسئلے علمائے کرام او نه اهل حل و عقد راپاسیدلي دي- نو ځکه دوي دخپل استاذانو له طرف دے موضوع ته د توجو نه کولو په وجه هغوي په کلونو کلنو پټ پټ  په دے محنت وکړو او خپل تحقیق ئي دچا ته ښکاره نه کړو ،نو نتیجه د ئي د حرم د بے حرمتے په شکل کښې راوته-

**جهیمان تحریک د غلطئے دویمه وجه:**

په حرم شریف کښ مونځګوزاریرغمال کولو سره دبیعت وغیره ترتیب جوړول او دے نه پس هئیت کبار العلماؤ له طرف نه فتوی جاری شوه چه سعودی حکومت د پاره په حرم کښې دے واقعه نه پس ددے خلقو په بیت الله شریف کښې وژل جائز دی، دے نه پس فوځ په بیت الله شریف حمله وکړه- په دے کښې دویمه غټه غلطی د مذهبی مشرانو وه چه هغوي جهیمان او د هغوي نور پیرو کار د ترغیب او ترهیب په ذریعه توبه تائب کولو تلقین کړے وے،دے نه پس دا پورا یقین وو چه هغوي د خپلو استاذانو خبره منلے وے او وسله ئي کیخودے وے او دغه شان به حرم شریف د الحاد نه بچ شوے وے او هلته به مرګ جوبله هم نه وے شوے-

**جهیمان تحریک  دغلطئےدریمه وجه:**

داسلامي ملکونو مشران او  مذهبي خلقو نه دا غلي پاتے شو بلکه ددغه خلقو خلاف  په  حرم شریف  بمباری کول او د بیت الله بے حرمتے تعریف ئي وکړو-

جهیمان تحریک د غلطئے څلورمه وجه:

ضیعف روایاتو باندے تنقید کول او صرف صحیح رویاتو عمل کولو کوشش لکه څنګه چه د شریعت نورامورو باندے اثر کړے دے ہم دغه شان کتاب الفتن او د امام مهدي باره کښې امور باندے هم ډیر اثر غورزولے دے- که جهیمان د تورو جهنډو متعلق روایات په دے وجه نه پریښودے چه دا روایات خو ضیف دي نو په حرشریف کښې به خون ریری نه کیدے او په دے کښې

بيادي غلطي د سعودي د هغه علماؤ وه،چا چه په ضعيف رواياتو باندے د اعتماد نه كولو ماحول جوړ كړے دے-

نوځكه د دے واقعه نه پس كفر د مغرب او مشرق نه په جزيرة العرب باندے دېر طرف نه حمله وكړه،او هر طرف نه په مسلمانانو حملے شروع شوے ،ځكه روس په افغانستان باندے حمله وكړه،عربو ملكونو د امريكے دپاليسئ په وجه مجاهدينو ته افانستان ته د تلو اجازت وركړو او په دے دوران كښې د خميني انقلاب راغے،دے نه پس ايران عراق جنګ شروع شو،او د دواړو طرفونو نه ډير مرګ جوبله وشوه،بيا د ايران عراق جنګ په ختميدو باندے عراق په كويت حمله وكړه او بيا كويت د امريكے فوج راوستو او په جزيرة عرب كښې ديره كړو،د هغوي په راتلو باندے دعربو په هلاكت كښې نوره هم اضافه وشه،ځكه چه اقوام متحده په عراق باندے معاشى پابنديانے ولګولے، ددے په وجه د عراق معيشت تباه شو او د بي بي سي د يو رپورټ مطابق صرف ۵ لكه ماشومان مړه شو او دنورو مړو تعداد ددے نه علاوه دے-

افغانستان كښې د روس د شكست نه پس هلته مجاهدين په خپل منځ كښې په جهګړو شول او چه كله د طالبانو حكومت راغے،نو د ١١سمتمبر واقعات وشول او بيا شل كاله افغانستان په جنګ كښې اخته شو ،چه كله په ٢٠٠٣ءكښې امريكے په عراق حمله وكړه،دا ځل امريكے خلق سم تباه كړل- تر دےچه په تيونس كښې د عرب بهار په نوم باندے دعربو حكمرانانو په خلاف يو تحريك راوچت شو،چه په شام كښې ډير خطرناك صورتحال سبب جوړ شو او بيا سعودى اتحاد په يمن بمبارى وكړه،ددے په جوب كښې حوثي مليشاؤ په رياض او دبئ باندے ميزائل راويشتل- په دے نظر چه حديث باندے بيا نظر وكړے نو مسئله راښكاره كيږى: **فلا تسئل عن هلكت العرب** ځكه چه نبى كريمﷺ په عربو كښې د فتنو زيات والے زيات خون ريزجنګونوته فرمائيلي دى:ويل للعرب من شر قد اقترب عربو د پاره ہلاكت والا شر نه لرے اوسيدل پكار دى ځكه چه په دے جنګونو تباهي ده-

دويمه خبره چه د جهيمان د واقعه نه امت ته معلومه شوه هغه د امام مهدى باره كښې تطبيقى علم وؤ،دے نه مخكښ خلقو به صرف صحيح احاديث

لوستل او د امام مهدی راتګ ئي یوه معمه ګنله ،لیکن ددے واقعه نه پس خلقو کښې ددے باره کښې علم پیدا شو او دے موضوع باره کښې اړخونونه تحقیقي تطبیقي کار رامخے ته شو-

لکه چه جهیمان د تحریک ظهور مهدي د راتګ د پاره د دروغو صبا وؤ،ځکه چه دے نه مخکښې ممبر او محراب په دے بحث او ذکر باندے غلے وؤ،لیکن دے واقعه نه پس یو طرف ته د مهدی راتګ باندے نه ختمیدونکے کتابونو سلسله شروع شوه او بل خواه ته دخلافت قائمیدو نه نا امیدو خلقو ته د امام مهدي آسره ملاؤ شوه او د هغوی د راتلو خواهش د خلقو په زړونو کښې پیدا شو، دغه شان دا واقعه یو ریښتاؤ صبا یعني د امام مهدي د راتګ علامت وګرزیدو-

چه په امت مسلمه په عامه توګه او سعودي حکومت په خاصه توګه دخپل مخکښې تیرو شو رویو نه ځان وساتي،مهدي غیر حقیقی یعنی جهیمان په کوم ماحول کښې راوچت شو هغه ماحول بیا راپید نشي،بے حیائي,سنیماګانے او نورے د الله د نافرمانیانو والا کارونه د ټول امت نه او د جزیرة العرب نه ووبساي-

لیکن داسے ونه شو بلکه ټوله امت مسلمه د کفارو تابعدار شو او سعودی حکومت هم د غه نعره اوچته کړله "**الاسلام المعتدل المنفتح علی عالم**"داسے اسلام چه معتدل وی او سعودي عرب د ټولے دنیا د پاره آزاد دے،یعني د ټولے دنیا د سهولتونو او فحاشو د پاره بل خواه د تلو حاجت نشته،بلکه دا وس په سعودي عرب کښې به ملاویږي ددے د پاره ویژن ۲۰۳۰ په نوم باندے سعودي عرب کښې یو نظام شروع کړو، چه د هغے په وجه به وس ښځو تپ مکمل آزادي حاصل وی او یورپ ته به د تلو حاجت نه راځی،د دے نه علاوه د جزیرة عرب په مختلفو ښارونو مثلاً ریاض او جده کښ بتان هم ولګول،او د امر بالمعروف په ځائے"هئیۃ الترفیہ"او ریفریشمنټ په نوم ئي په مختلفو ښارونو کښې سنیماګانے,میوزک فیستول او نور مغربی مادر پدر آزاد معاشرے د قائمیدو دپاره څه کمے پاتے نشو-

په وينا د"سعد الفقيه"د ا صورت حال د نن نه ۴۲،۴۳ کاله مخکښې د جهيمان د شروع کيدو سبب جوړشو،چه هر ځائے کښې به د ټنګ ټکور (موسيقئ) رواج عام وو نو ځکه د جهيمان تحريک نه پس "الصحوة الاسلاميه" نوم تحريک شروع شو،چه په هغے د اسلامي شعائر بے حرمتي او د امر بامعروف د قائمولو د پاره د ټول ملک علماؤ  کوششونو وکړل،او آخر سعودي حکومت دوباره اسلامي نظام د بحال کولو د پاره فکرمند شو-

ليکن ۴۳کاله پس بيا په سعودی کښې د بے حيائي ماحول جوړ شو،چه د هغے مخ نيونکی علمائے کرام جيلونو  وچولے شو او تائيد کونکو ته په چپ پاتے کيدو باندے د ژوند کولو اجازت وو- په ظاهره دا معلوميږي چه د مهدي دراتګ نورو علاماتو کښې يو  لويه علامه  د جهيمان تحريک د ناکاميدو نه پس بے حيائي خوريدل  او شاهي خاندان کښې د بے اتفاقئ په وجه به سياسي حالت خراب وي،دے نه پس ممکنه ده چه امام مهدي راشي، لکه څنګه چه د الله تعالی ارشاد دے:

**واذا اردنا ان نهلک قرية امرنا متر فيها ففسقوا فيها فحق عليه القول فدمرنها تدميرا**-چه کله مونږ د يو بستئ د هلاکت اراده وکړو نو نو د هغه ځائے اسوده حال خلق په ګناهونو کښې اخته شي،چه د هغے په وجه  په هغوي باندے د الله تعالی  دعذاب حکم ثابت شي،نو بيا هغه مونږ هلاک کړو-

په يو قرأت کښ"أمرنا"راغلي دي، چه د هغے معنیٰ ده چه مونږ دهغے حاکمان  فاسقان فاجران خلق جوړ کړو او هغوی فسق او فجور کښې آخري حد ته ورسی،دهغے په وجه په هغوي باندے دالله د عذاب فيصله ثابته شي- په سعودي عرب کښې په  شرابو پاندی نه لګول او علما ئے کرام په جيلونو کښې بندول که د دے آيت په رڼا کښې وګورئ نوخبره ښکاره شوه:**ونخوفهم فما يزيدهمالا طغيانا کبيرا**  مونږ خو هغوي لره ويروو ليکن دے سره په هغوي سرکشي  نوره هم زياتيږي-

د جهيمان تحريک نه مخکښې بے حيائي او فساد دحکومت په سرپرستئ کښې حد ته ورسيدو،نو دا تحريک اګر چه په دے څه شرعي غلطئ پکښې

وے ، یلکن د دے خلقو په اخلاص سره علمائے کرام د سعودی عرب اصلاح طرف ته متوجه شو او په ملک کښې د اسلام حالت ښه شو ـلیکن د 2017نه پس دا فساد بیا په زور سره شروع شو،ددے د پاره ضرورت د دے خبرئ وو چه د ټول امت علما د خپلو خپلو ملکونو حالات په شریعت سمولو سره په عالمی توګه د خلافت د قائمیدو کوشش وکړی او په دے دور کښې د امام مهدي د خلافت دپاره دعلمائے کرامو کمک ته متوجے شی-

ځکه چه قرآن مجید کښې دا اصول مقرر شوي دي چه کوم قوم ته په زمکه حکومت ملاؤ شي او هغه قوم هغه حکومت د الله تعالی د مرضئ خلاف استعمال کړی او په زمکه کښ د ګناهونه په ذریعه فساد خوروي نو الله تعالی په عامه توګه هغه ته دوه ځله موقع ورکوي او بیا هغه د زمکے د مخ نه پناه کوي لکه څنګه چه د یهود باره کښې فرمائیلي دي چه دوي ته به هم دوه ځله حکومت ملاؤ شي ،لیکن چه دوی حکومت په غلطه روان شي نو الله تعالی به په دوي خپل طاقتور بندیګان مسلط کړي او دوي به تباه و برباد کړي او د دوی جماعت یا مال ودولت ډیر والے به ددوی هیڅ په کار رانشي،لکه څنګه چه فرمائي:**"وان تعودو ا نعد"**که تاسو د خپل بد عملئ نه منع نه شوئ او بیا بیا ئي کوئ نو مونږ به هم دغه شان عذاب نازلوؤ،فرمائي:**ولن تغنى عنكم فئتكم شيئا و لو كثرت** اګر که تاسو سره ډیر خلق او ډیر دولت وي لیکن هغه تاسو بچ کولے نشي-

موجوده حالاتو کښې نه خو په مسلمانانو کښې څوک خلیفه شته او نه مکمل اسلامي نظام حکومت شته ، په دے حالاتو کښې چه یو طرف ته احادیثو کښې د امام مهدی د راتګ نه مخکښ علامات زمانیه،مکانیه اوتکوینیه ممکنه طور باندے پورا کیدل په پکاردي،نو بل طرف ته دشرعي ذمه داریانو د اداکولو د پاره په احادیثو کښې چه د علمائے کرام کو فرائض منصبي بیان شوی دی ،هغه پورا کول هم په زمونږ لازم دي ، چه یو طرف ته د مسلمانانوسروه شوے د الله تعالی د خلافت د قائمولو وعده پورا شي ،نو بل طرف ته د علمائے کرامو ته په احادیثو مبارکه کښې ذکر شوي علامات شخصیه هم په سړي کښې ملاؤ شي ، نوخلافت علی منهاج النبوه نبوي وعده به هم پوراشي او مونږ به د هغے اهل شو-

دجهیمان تحریک د ناکامۍ بنیادي وجه دا شوه چه  چه هغوي د علامات زمانیه  دمکمل کیدو  انتظار ونه کړو او په تندۍ کښې د مهدی د خپل طرف نه مقرر کړو  او د دے  صرف صحیح ئي د تحقیق بنیاد جوړ کړو او ضعیف روایات ئي  بالکل ترک کړل،چه د دے په وجه په حرم شریف کښې د خون ریزۍ واقعه وشوه-

هم داسے د امام مهدي دبیعت دپاره صحیح احادیثو کښې دا شرط  وئیلے شوي دي  چه دا بیعت به دومره امن او طمینان سره وي چه په بیت الله که به یو قطره وینه هم تویۍ نشي او نه به ارام کولو والا اوده سړے به دخوب نه راپاسي-او دا بیعت به په شرعی  اصولو په ټوله دنیا کښې مختلف طرفونو نه بیت اخستے شوي علمائے کرامو په رضامندۍ وشي-

زمونږ په ذمه دارو کښې دا دي چه فتنه ګرو  خلقو د ملګرتیا نه ځان وساتو- د خپل صحت خیال وساتو ،ورزش،تیراندازي،لامبو وهل،ډرائیونګ او نور تربیتونه ضرور وکړو- دخپل کور او بچو د پاره خوراک محفوظ کړو- او دغه شان دبینک او نورو مالیاتي ادارو په موجوده نظام  باندے باور ونه کړو بلکه ثمن حقیقی یعني سرۀ زر او سپین‌زر وغیره ذخیره  ځان سره وساتو- دالله تعالي نه ډیرے دعاګانے غواړو او تهجد و اهتمام کوؤ- ددین په ټول کارونه په  اتفاق او اتحاد سره وکوؤ او جماعت سره ځان یو ځائے وساتو- د علماؤ قدر کوؤ او د دیندارو خلقو سره محبت کوؤ- دامام مهدي د لښکر سره یو ځائے کیدو دعاګانے غواړے او د ورځے زمری او د شپے عبادات ګزار جوړیدو کوشش کوے- هم دا د امام مهدي د لښکر تیارے دے-الله دے مونږ له توفیق راکړي آمین

**سوال(۲۵):**دامام مهدی د بیعت د پاره به دټولے دنیا نه اوؤوه یا نهه علمائے کرام به د خلقو نه د امام مهدي د کمک بیعت اخستے وی او مکے مکرمے ته به راځي- آیا موجوده وخت کښې ددے کار د پاره څه لاره ممکنه ده، د قرآن او حدیثو په رڼا کښې رهنمائي وکړے-

جواب:دالله رب العزت ارشاد دے: **بل کذبوابما لم یحیطوایعلمه ولما یا تهم تاویله** چه کفار و ددے خبرے تردید وکړو او دروغ ئي وګڼل، اود هغے تاویل او انجام وسه پورے هغوي ته ښکاره نه شو-

که د دے ایت په رڼا کښ مونږ وګورو، نو معلومه به شي چه د امام مهدی زمانه او هغه زمانه کښې د هغه راتګ دا د نمر په شان دی، چه هر صحیح نظر والا سړي ته به په نظر راځی،چه د چا نظر صحیح وي،لیکن چه د چا په سترګو کښې"چندنا"فن وي او په نظر کښې فرق وی نو هغه نمر هم صحیح نه ویني،ځکه چه نمر راختو وخت کښې هغه خلق دنمر شعلے پیژنی چه څوک ویخ وي، لیکن کوم خلق چه په غفلت کښې وي یا اوده وي،نو هغوي د نمر راختو په وخت خو نه د نمر د شعاګانو څه پته لګي او نه هغوی د نمر دراختو ښکلے نظاره لیدو ته ملاویږي او کله چه نمر راوخیژي،د دے نه پس هغه ته اندازه ولګي چه نمر راختلے دے او د نمر د ګرمئ او د تودوالي احساس ورته وشي-

دغه شان د اولے او دویمے ورځے سپوږمئ هر څوک نشي لیدلے،بلکه هغه سړے چه ډیر کوشش او اهتمام کوي او دے دپاره زاویه ګوري او د سپوږمئ د لیدو د پاره انظار کښې ناست وی،نو هغه سړے ئي لیدے شی،رلیکن وروستو چه کله سپوږمئ غټه شي ،نو بیا هر سړے یې بیا لیدے شي-

کیدے شي چه دا حال د امام مهدي هم وی چه دومره زیات دلائلو د لیدو نه پس هم مشاهده نه کوي،نو دے نه پته ولګیده چه څوک یئ نه ویني نو د دوي دلیدو څه دلچسلپی نشته او د دے دلائلو یئ ژوره مطالعه نه ده کړے،بلکه ددے دا دلیل دے چه سرسری مطالعه یئ کړے ده،ځکه چه هر سړے په هر فن کښې مجتهد نه وی- بلکه په اجتهاد کښې تجزیه ممکنه ده-

لکه څنګه چه د الله تعالی ارشاد دے:**ولو ردوه الی الرسول والی اولی الامر منهم لعلمه الذین یستنبطونه** یعني پیژندل او د ه هغے متعلق امور پیژندل او په دے کښ د غلطئ نه ځان ساتل او په دے کښې دخپو د خویدو او غوررزیدو نه په امن کښې کیدل په دے صرف استنباط والا پوهیږي-

استنباط : نبط د اوبو راوتو ته وائی،دکوهي اولے فواره راوتو ته "نبط " وائی ، کوم خلق چه ژوره مطالعه او ژور سوچ لري او ددے په وجه معاملات کښې غور کوي،او په مختلف طریقو سره دحالاتو جائزه اخلي او ځان حقیقت ته د رسولو کوشش کوي،لکه څنګه چه د الله تعالی ارشاد دے چه مونږ قرآن لره یوه ښکاره نخښه ګرزولے ده وکذالک انزلنه آیات بینت مونږ د قرآن آیتونه رالیږلي دي،او د دے آیتونه بالکل واضح دي-

لیکن باوجود ددے چه واضح اهل لسان عرب وؤ یعني عربي يې خپله ژبه وه دا خلق په قرآن نه پوهیدل- ددنیا په ټولو معاملاتو پوهیدل،ټول ُڅیزونه ئي پیژندل لیکن واضح طور ددین په خبرو، نه پوهیدل،بلکه هغه خلق په دے پوهیږي چه د چا په زړونوو کښې علم او دامت غم او درد لري-الله رب العزت د قرآن پوهه او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم رسالت او بعثت د نمر او سپوږمئ په شان ګرځولي دي،چه بصیرت والو په نظر راځي-هم دے باره کښ دالله تعالی په دے ارشاد کښې اشاره ده:بل هوا آیات بینت فی صدور الذین اوتو العلم بلکه د قرآن واضح آیتونه د اهل علمو په سینو کښې دي-چه د چا زړونه د یقین په زیور باندے آرسته وي،نو په هغوي کښې بصیرت وی اوپه حق خبره اوریدل او پوهیدل ورته آسان وي دے نه پس هغوي د حق پیروي کوي او په حق خبره عمل کوي- او د خپلے زندګئ مقصد ئی ګرځوي ،ددے په مقابله کښې چه د چا زړونه داسے نه وي،نو الله تعالی هغوي ته"اعمی"یعني ړانده وئیلی دی:**افمن یعلم انما انزل الیک من ربک الحق کمن هوااعمی** کون خلق چه پیژنی ستا طرف ته د الله تعالی حق یعنی قرآن راغلے دے،آیا د هغوي د هغه برابر دی،چه د چا زړونه ړانده دي-

ځکه الله تعالی اهل علم ته د قرآن دخودلو او پوهیدلو د پاره ارشاد فرمائي:**ولیعلم الاذین اوتو العلم انه الحق من ربک** او اهل علم پیژنی چه دا قرآن دالله تعالی د طرف نه حق او رښتونے دے او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم طرف ته نازل شوے دے- په یو بل آیت کښې فرمائي: **تلک حدود الله**

**يبينها لقوم يعلمون** دا د الله حدود دي،الله تعالى هغه خلقو ته بيانوي ،چه څوک علم لري-

ددے نه معلوم شوه چه په هر دور کښې دحق خبرے انکار هغه خلق کوي ،چه د چا په زړونه تنګ وي،ځکه چه د هغوي په عقل کښې دا خبره وي چه په کومه خبره دوي نه پوهيږي ،بس سمدستی د هغے انکار کوي-حالانکه دا د اهل علمو طريقه نه ده،ددوي مخکښې چه کومه خبره محلِ اشکال وي او هغوي په نه پوهيږي ،نو په هغے کښې تحقيق کوي او ځان د خبرے مقصد ته رسوي،او دے نه پس فيصله کوي او کوم خلق چه د حقيقی علم مظاهره نه کوي ، نوهغوي چه په کومه خبره نه پوهيږي نو فوراً د هغے خبرے انکار کوي،ځکه فرمائي:**بل کذبو بما لم يحيطوابعلمه** يعنی هغوي دهغه خبرے تکذيب کوي چه په کومه خبره نه پوهيږي- حالانه الله تعالی فرمائي:**ولما يا تهم تا ويله** وسه پورے له ددے خبرے تاويل او انجام ښکاره شوے نه دے-

ددے ارشاد مطلب دا دے چه څو پورے خبره انجام ته نه وي رسيدلي،د هغے نه مخکښې انکار کول جائز نه دي،بلکه چپ پاتے کيدل مناسب دي،چه د يو خبرے تائيد وشي او انجام ته ورسي او د هغے حقانيت ښکاره شي، هغه وخت پورے انکار کول جائز نه دي- او که په اول کښې يو خبره بغير د تاويله رښتيا معلوم شی او د هغے په حق کيدو باندے يقين راشی ، نو د هغے په منلو کښ څه خرج نشته،ليکن انکار کول په هرمذهب او ملت کښ مناسب نه دے-

د مخکښې د امتونو دانبياؤ د تکذيب هم دغه وجه ده چه هغوی به د خپل وخت د نبی په خبره نه پوهيدل، ځکه چه د هغوی په زړونو کښې به ددے خبرے د حقانيت احاطه نه وه،ځکه د نبي د دے خبرے تسليمولو طاقت نه لری-

ځکه په قرآن مجيد کښ:"**لم يحيطوا بعلمه**"ارشاد فرمائيلے شوے دے او د "احاطه"مطلب دادے چه يو څيز ښه پوهيدل او دے نه پس په هغے منګولے لګول-

د انکار يوه بله وجه دا وه چه د هغه نبی به چه څه خبره کوله،نو دهغے تعبير او د هغے حقيقی تاويل به د هغوي په کفارو په مخکښې نه کيدو،نوځکه چه کومه پوهه نه شی نو وئيلو والا که ډير دليلونه بيانو وی او دے ډير ريښتونے وی، خو هغه به ئي نه تسليمو ،د طريقه په دے امت کښې هم جاري ده ،ليکن د اہل علم ليکن د اہل علمو دا طريقه نه وه،بلکه هغوي د دےخبرے په حقيقت پوهيږی او ددے ژوره مطالعه کوي،د الله تعالی ارشاد دے:

د هغے ژوره مطالعه کول په هغے پوهيدل- دويم به انکار کوۇ نو د هغوی مخکښې به هم هغه خبره وه ليکن د هغے تعبير به ئي مخے ته نه وو نو کومه خبره چه مخے ته نه وی خواه هغه که رښتيا هم وي خلق هغه نه مني ددے په وجه الله رب العزت ارشاد دے:**قل امنو به اولا تؤمنوان الذين اوتو العلم من قبله يتلی عليهم يخرون للاذقان سجدا** يعنی الله رب العزت د دے خلقو په وجه اسلام ته عزت او غلبه ورکړه،ځله چه هغوی اهل علم وو او د علم په رڼا کښې هغوي الله رب العزت پيژندو-

او د اہل علم مطلب دا دے چه د دنيا کارونو کښې او د آخرت معاملاتو ته به هغوي ډير ژور نظر کتل،د هغوي مقصد به صرف شپه ورځ تيرول خپل معاملات کتل او خپل علمي او نور مصروفيات کتل نه وو ،بلکه هغوي به ټول نظام کښې غور وفکر کتل چه په دنيا کښې چه څه هم کيږي هغه د الله تعالی د قوانينو او د رسول صلی الله عليه وسلم د حديثو په رڼا کښې دهغے ډير په غور سره جائزه اخسته چه د شريعت په رڼا کښې هر قدم اوچت کړي-

هم دغه وجه ده چه د اسلام په شروع کښې نبی کـريم صلی الله عليه و سلم باندے ايمان راوړلو والا ډير کم وو،مګر د چا عقل کار کوو او په انجام باندے نظر وو،لکه ورقه بن نوفل رضی الله عنه اوعبدالله بن سلام رضی الله عنه وغيره حضرات، هغوي هم هغه وخت اسلام قبول کړو-هم دغه رنګ سلمان فاسي رضی الله عنه درے علامات ياد کړي وو،هغه ئي چه پيغمبر صلی الله عليه وسلم کښې وليدل نو د هغوي حقانيت ئي تسليم کړو او اسلام ئي راوړو-

هم دغه شان به دامام مهدي انصار په شروع کښې ډیر کم وي  او د امام مهدي  د نصرت  محنت کولو والاپه ړوله دنیا کښ صرف اووه یا نهه علما به وی او په دے کښ به د هر کس په لاس د امام مهدی د بیعت نه مخکښې د نصرتِ مهدۓ بیت کولو والا 313 کسان وي،ځکه چه هم دا به د علم په مقتضیٰ باندے  صحیح طرف ته تلو والا پوهیدونکي خلق وی ،چه د رسول صلی الله علیہ وسلم د نمسي د خلافت قائمیدود دپاره به مکے طرف ته ځي او  هلته به د محمد بن عبدالله دالمهدی په لاس په خانه کعبه کښې د رکن یمانی او مقام ابراهییم سره بیعت کوي-

**سوال(۲۶):**امام مهدی چه کله تشریف راوړی نو د دنیا حالت به څنګه وي؟فرقه پرستي او احادیث مبارکو نه استدلال-

جواب:موجوده دور کښ فرقه پرستي ختمول د مسلمانانو په اتفاق باندے کیدے شی او دمسلمانانو اتفاق دقرآن و سنت تعلیمات په دنیا کښې په نافذ کولو باندے کیدے شي،چه د هغے دپاره خلافت راشده نمونه ده،چه د امام مهدي په وخت کښې به قائمیږی،هغوي رضي الله عنه به د مجدد په حیثیت باندے تشریف راوړي،لکه څنګه چه د الله رسول صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي:د امت مجدد هر سل کاله پس د امت د اصلاح د پاره راځي،چه د مسلمانانو د دینی تعلیماتو غلطۍ صحیح کیدو به تجدید (ټهیک) کوي په یو بل روایت کښې دي:**ابشرکم بالمهدی یبعث علی خلاف من الناس وزلازل** او په بل حدیث کښې دي:**یملاالارض قسطا وعدلا کما ملئت ظلما و جورا-**

نو د امام مهدي په صفاتو کښې د ټولو نه لوے صفت دا دے چه د امام مهدي د راتلوو نه مخکښې به په ټوله دنیا کښې عدل او انصاف ختم شي او د ظلم زیاتي نه به دنیا ډکه شي-**جوراو ظلما** په دے دواړو کښې اوله خبره: د جور مطلب تصوراتو کښې ناانصافی ده یعني د امت په ذهنونو کښې چه کوم مفاهیم وي،نو هغه به دظلم په سوچونواو فکرونو باندے وي یعني اعتقادي ظلم به عام شي-

او په عقیده کښې د ظلم نتیجه به عملي ظلم په شکل ښکاره شي او د ظلم نه مطلب مرګ جوبله ،دخلقو حقونه ضائع کیدل او نور فساد وغیره دے او د جور مطلب مفاہیم،آراء او افکار و معتقدات کښې نا انصافي ده،چه د امام مهدي په راتلو به ختم شي-

په موجوده زمانه کښې خو نه د صحیح تصوراتو څه انتظا م شته او نه د عدل و انصاف دقائمولو څه ذریعه شته,لیک د مهدي په وخت کښې به ددین پوهه او صحیح نظریاتو او تصوراتو به یو لوی پلیټ فارم وي- موجوده ډله بندي،مختلف سیاسي او عسکري تنظیمونه په خپل منځ کښې د بے اتفاقۍ ښکار دی،د مهدي د راتلو نه پس به په ټول انسانیت کښې عدل او انصاف راشي-

ځکه چه امام مهدي به  د دے فتنو په موجودګئ کښې د يو ډلے ،تنظيم يا جماعت حصه نه جوړيږي،لکه په يو روايت کښې دي:**لم تلبسه الفتن ولم يلبسها** امام مهدي به نه فتنو کښې اخته کيږي او نه به او نه به فتنے د ده خواله راځي او په يو روايت کښې فرمائي:**ليس من ذى ولا من ذى** د بيعت نه مخکښې هر يو کس  به په خپله رائے اسرار کوي چه د هغے په وجه  د نورو رائے قبلول ګران وي ،صوبائي، داخلي،ملکي،علاقائي،او بين الاقوامي اختلافات به ډير زيات وی چه د هغے نه  دوتلو به څه لاره نه وی،هرکس به د امت د تقدير دبدلولو کوشش کوي ليکن ددے مصيبتونو او ددے پيچيده ماهول نه د وتلو حل به چاسره هم نه وي،چه د هغے د اصلاح د پاره به امام مهدي  تشريف راوړي ،چه کله د امام مهدي له طرف نه داسلامي نظام پاليسي قبول کړے شي ,نو خلقو ته به امن وامان او عدل و انصاف ملاؤ شي- ددے حالاتو د پاره د مخکښې نه تياريځ د هر چا ذمه داري ده-

**سوال(۲۷):**یهودو د خپل محرف تورات نه د نبي کریم صلی الله علیه و سلم د پیدائش ځائے او هجرت وغیره علامات معلوم کړی وو،نو چه مونږ کوشش وکړو نو دقرآن و حدیث نه ځائے او وخت نه شو معلومولے؟

جواب:**تمهید**:ځمونږ کار عمل کول دي،مقرره وخت پیژندل او خاص کول ځمونږ کار نه دے،لکه ځنګه چه نبي کریم صلی الله علیه و سلم ته د جمعے د ورځے د دعا د قبلیدو وخت نه دے خودلے شوے- هم دغه رنګ د لیلۃ القدر فضیلت بیان شوے دے،لیکن وخت متعین شوے نه دے-دغه شان د قیامت باره کښ علاماتو وغیره نه نشاندهي شوے ده،لیکن مقرره وخت ارشاد نه دے فرمائیلے شوے،ځکه چه الله تعالی قرآن مجید د امت د هدایت د پاره واضح طور سره نازل فرمائیلے دے، لیکن بعضے آیات متشابهات هم نازل فرامائیلی دی چه د هغے حقیقي معنے د الله تعالی نه علاوه بل چا ته معلوم نه دي دغه رنګ حروف مقطعات هم دي چه د هغے قطعي معني چاته هم معلومه نه ده-

هم دغه شان د علامات قیامت اهم امور مثلاً د امام مهدي د راتګ وخت او شخصیت واضح طور سره مقرر نه دي فرمائیلي، لیکن دا علامات یې فرمائیلي دی،لکه ځنګه چه د جمعے په ورځ دقبولیت دعا وخت په احادیثو کښې بیان شوے دے- لیکن حضرات صحابهؓ و تابعینؒ او علمائے امت ددے دپاره او ددے دتعین د پاره مختلف وختونه مقرر فرمائیلي دي،دغه رنګ دلیلۃ القدر دوخت مقرر کیدو باره علمائے کرامو د رمضان دآخری عشرے د طاق شپو تفصیل بیان فرمائیلے دے، دغه شان نور ډیر اقوال دے باره کښ نقل شوي دی-

هم دغه رنګ نبي کریمﷺ د علامات قیامت د فتنوباره کښې،امام مهدي،فتنه دجال او نزول عیسیٰ علیه السلام باره کښې اهم امور بیان کړي دي،چه د هرے زمانه خلق د اوپیژني او په دے پوهه شي او ددے فتنو نه ځان وساتي،او د نورو دیني امورو په شان په دے کښې هم مقرره وخت نه دے فرمائیلے شوے،لیکن صحابهؓ،تابعینؒ او نورو اہل علم حضراتو د امور د

شریعت په رڼا کښې ددے وضاحت بیان کړے دے او امت ته په دے د عمل کولو دعوت ورکوي-

هم دغه شان په تورات او انجیل کښ د نبي کریم صلی الله علیه و سلم د پیدائش ځائے او دهجرت معلوم کړے وو او دلته راغلل او نبي کریم صلی الله علیه وسلم ئي پیژندلے وو ،لیکن ډیر کم خلقو ایمان راوړو،دغه په تورات او انجیل کښې پیژندل کافی نه دي،بلکه دے دپاره تیاري کول ضروری دي-

اصل جواب:په قرآن او حدیث کښې هم داسے علامات موجود دي،دهغے نه د وخت او سړي اندازه لګي ،لیکن دا ختمي او قطعي ګڼل صحیح نه دی،په دے باره کښې دامام نعیم بن حمادپه کتاب الفتن کښې حضرت ابن لهیعهؒ نه یو روایت نقل دے،په هغے کښې فرمائی :**اجتماع الناس علی المهدي سنه ومائتین،بحساب العجم لا بحساب العرب**،چه د خلقو په امام مهدی باندے راجمع کیدل په سن (۴)او(۲۰۰)کښې به وي-

**فائده:**فلکیات او تقویم علم والا خلق په خیال دا خبره معروف ده چه عام توګه باندے دعیسوي تاریخ متعلق په دنیا کښې دوه قسم تاریخونو رواج دے:

(۱)پوپ ګرګوري تاریخ دے،دا تاریخ عیسائي خلقوکښې رواج دے چه اووه کاله مخکښې دے-

(۲) د ایتهوپیه قطبی کلیسا تاریخ دے،دا اووه کاله وروستو دے نو د ۲۰۰۴

سره چه مونږ اووه کاله جمع کړو نو په دے حساب سره به ۲۰۱۱ شی — نو

په امام مهدی باندے بہ خلق۲۰۰۴ء هم۲۰۱۱ء کښې راجمع کیږي،لیکن د ا یقیني نه بلکه دا ګمان دے غیر یقینی او غیر قطعي دي-

موجوده دور کښې چه د عرب بهار په نوم باندے په تیونس، مصر، لیبیا او نور عرب ملکونو کښې چه کوم عوامی انقلاب په مزه مزه زیاتیدو او په شام کښې ددے په وجه زیات فسادات وشو- په دے دوران کښې د امام مهدي تحریک په عربو کښې شروع شو او د امام مهدي متعلق چه څومره شبهات وو په مزه مزه ختمیدل اود یو منظم جماعت پہ شکل کښې ډیر خلق د دے

تحرک سره یو ځائے شو-والله اعلم-ممکنه ده چه ددے جماعت په مدد سره ه مخکښې راتلونکے زمانه کښې د امام مهدي ظهور وشي-

دویمه خبره:دنبی کریم ﷺ دځه ارشاداتو مفهوم دے چه ځما په امت باندے به څلور فتنې وې او آخری فتنه به الدهیما وي- ددے فتنے د مددت متعلق د ابو هریره ؓ په یو روایت کښې دي چه دا به اتلسو کالو پورے وي او په دے کښې په هر نهه کسانو کښې اووه کسان مړه شي –په یو بل روایت کښې دي چه دوران کښې به د دریائے فرات کښې د سرو زرو د غر متعلق یو مسئله به هم راوچته شي-

په موجوده دور کښې که مونږ د ترکی آپریشن باندے غور وکړو نود یو نام فرات وو او دیو نوم نبع الاسلام وو نو فرات باندے جنګ د څو کالو نه شروع دے په دے کښې دی بهر حال څلورمه فتنه"الدهیما"متعلق که مونږ موجوده زمانه کښې جائزه واخلو نو معلومیږی چه د هر علاقے یو خله فتنه ده مثلا عراق کښې فتنه الدهیما اتلس کاله پورے ۲۰۰۴ء نه شروع ده،او وسه پورے وخت په وختمختلف شکلونو کښې زیاتیږي-

کتاب الفتن نعیم بن حمادپه یوروایت کښې دي چه په اووم کال به مصیبتونه او آفتونه راځي او په اتم کال به مرضونه راشي او په نهم کال به لوږه تنده راشي-۱۴۳۸ھ ګویا اتم کال او ۳۹ دانهم کال دے- ددے حساب نه معلومه شوه چه د پورا دنیا حالات د مهدي دراتګ د پاره تیاریږي ،تر دے چه د امام مهدي دشمن هم خپل صفونه تیار کړي او مخے ته راځي- په روایاتو کښې دي چه **خروج السفیانی بعد تسع وثلاثین تسع و ثلاثین** معنی ده ۳۹ او که د کال په بنیاد شي نو ۱۴۳۹ه ده- دا ضروری نه ده چه د ۳۹ کال تیردو سره د امام مهدي راشی،لیکن دومره ضروري ده چه دے نه پس به راتګ نزدے وي-

نو ځکه بخاری کښې یو روایت دے چه ځما د امت مثال د هغه مزدور په شان دے چه هغه خو کارلږ وکړي او اجر ورته زیات ملاؤ شي،علامہ ابن

حجرليکلي دي چه ددے امت عمر۱۰۰۰ نه کم نه وي-او سنن ابي داؤد په روایت کښ دی چه ځما د امت په عمر کښې د نیمه ورځ یعني د پینځه سوه کاله اضافے باره کښې ما د الله تعالی نه سوال وکړو نو الله تعالی قبول کړو-ګویا چه د امت مسلمه عمر به پینځلس سوه کاله وي-په یو بل روایت کښې علامه ابن حجرؒ نقل کوي چه ځما امت عمر په آخري هزار کال کښې راغلي دي-

په دے رڼا کښې وګورے نو د سفیانی باره کښې روایت نه معلومه شوه که هغه په ۳۷کښې راغے،نو د هغه حکومت به ۲۸میاشتے وي او که په ۳۹ کښې راغے نو د هغه حکومت به نهه میاشتے وي-او د سنن ابي داؤد په روایت کښې دي چه د اسلام چکئ به پورے چلیږی یا ۳۶پورےاو یا ۳۷ پورے چلیږي که په دے دوران کښې امت هلاک شو ،نو دهلاکت په لاره د تلو د وجے به هلاک شوے وي ،او که هلاک نه شو،او د دن د قائمیدو د پاره ئی کوشش وکړو نو نور اویا کاله اضافه به د تیر شوو کالو پہ مقابله وشی-
[سنن ابی داؤد،رقم:۴۲۵۴]

په حرم شریف کښ د جهیمان د واقعه نه پس په عرب ملکونو باندے یورپی حمله او د عالم اسلام نور کمزور کیدل ،عراق او شام کښې بد امني،جنګ او معاشي او اقتصادي تباهي ده- په دے وجه د امام مهدي واقعه اګر چه د غیبو سره تعلق لري،لیکن د ذکر کړے شوو حالاتو ته په کوتو سره عمل طرف ته ډیر ه توجو پکار ده-

په دے عملونو کښې لکه څنګه چه مونځ،روژه ، زکاة ،حج او معاشي او معشرتي ذمه داریانے د شریعت په رڼا کښې ادا کول ضروري دي هم دغه شان په دے مخصوص حالاتو کښې دمهدي د راتګ متعلق شرعي ذمه داریانے پیژندل او هغه په وخت او په صحیح طریقے سره ادا کول هم ضروري دي-

په هغے کښې په موجوده دور کښې د فتنو نه ځان خبرول،د بیعت مهدي دپاره پکار شرعي شرائطو پورا کول د دے وخت اهم ضرورت دے،هم دغه

رنګ د دجال فتنه او د عیسیٰ علیہ السلام نزول په باره کښې فتنے پیژندل او شرعي اصول او ضوابط پورا کول د یو امتي په حیثیت اهم فرائض دي-

**سوال(۲۸):**د امام مهدي د راتگ نه مخکښې د نفس ذکيه د قتل نه څه مطلب دے؟عالمي ادارو د امام مهدي د شخصيت د لټولو او د الله تعالى له طرف نه د امام مهدي د حفاظت باره کښې په حديثق کښې څه ذکردے؟د امام مهدي د بيعت نه پس د مخالف لښکر په زمکه کښ دننه (خسف)کيدل متعلق رواياتو موجوده دور کښې تطبيق څنګه کيدے شي؟

جواب:د مصنف ابن ابي شيبه په روايت کښې دى چه د امام مهدى د راتلو نه مخکښې به نفس ذکيه قتل کيږي او په دے باندے به د زمکے او آسمان والا په غصه کښې وي،ددے نه پس به امام مهدي به داسے راوستلے شي لکه چه څنګه ناوے خپل ناوک ته رخستولو په وخت سنګهارولے شي-

**فائده:** ددے حديث نه يو څو خبرئ معلو ميږي:

اوله خبره:د امام مهدي د بيعت د پاره د مخکښې نه به يو منظم جماعت دعوت چلوي ،چه د خپل وس مطابق به هر قسمه وسائل پکار راولي او د امام مهدي د راتګ تيارے به کوي-

په دے کوششونو د ټولونه اهم کار د ټولے دنيا د خلقو سره رابطه کول او هغوي مکه مکرمه کښٰ د امام مهدي د بيعت د پاره يو ځائے کول دي- او د دے کار نور وضاحت د عبدالله بن مسعودؓ په حديث کښې اووه علمائے کرام په لاسو د دنيا په مختلفو طرفونو کښې د بيعت کولو د پاره دخلقو د راتلو ذکر دے-

په دے خلقو کښې به داسے هم وى، چه د هغوي تعلق به د مخکښې نه د امام مهدي سره نه وي او نه به هغوي د امام مهدي صفات په خپلو سترګو ليدلي وي، دا خلق به دا امام مهدي خوا ته لاړ شي او د هغه د صفاتو وغيره به په غور سره جائزه واخلي او د هغوي سره راغلي علمائے کرام به په دغه وخت د سختو حالاتو په وجه د امام مهدي د بيعت د پاره بيا بيا وينا کوي،ليکن هغويؒ به هر حل د علمائے کرامو پيشکش رد کوي-

**دويمه خبره:**علمائے کرام به امام مهدى به په بيعت مجبوره کولو دپاره د

امت مظلومیت ورمخکښې کړی،دناوے په شان به  هغه د بیعت د پاره تیارولو کښې کامیاب شی-

دریمه خبره:دامام مهدي بیعت به د ټولے دنیا د انقلابونو په شان دهر قسمه شور شرابه، ځکه چه په دے بیعت کښې به شریک خلق د امت په درد درد مند خلق وي ، داسلامی نظام د قائمیدو د پاره د مختلف تنظیمونو په شکل کښې ،په خپل منځ کښې د اختلافاتو بے زار او د هر قسمه ښکاره او پټ تربیت کړے شوي به وي،او ددوي انتخاب به دالله تعالی د فیصلے مطابق وي-
 ځکه په دے حدیث کښې فرمائیلی دی چه دا بیعت به ډیر په نظم ضبط سره منعقد کیږي نه به په  کښې آوازونه اوچتیږي  او نه به چاته څه تکلیف رسي ،بلکه د یو اوده سړي خوب کښې به خلل هم نه راځي او نه به په دغه وخت څه خون ریزي کیږي- یو وجه دا کیدے شي چه د هغوي په زړونو کښې د بیعت اهمیت،د خلافت اہمیت،دامام مهدي ادب او احترام او د بیت الله شریف اہمیت مخے ته وی،ځکه په دے کښ شرکت کولو والا  هغه عظم خلق وي،چه د ټولو مطلوبه ادابو وغیره خیال به ساتي-
**څلورمه خبره:** د روياتو د مجموعے په ظاهره معلومیږي چه دامام مهدي دبیعت کولو نه مخکښې دخلقو په زړونو کښې ډیر زیات خواہش وي ،ځکه چه  دامت د کامیابئ بنیاد به دا وي- دداسے خلقوواسطه د هر قسم ددروغ دعوے کولو والا راغلي وي،ځکه د بیعت دا منظر به دلیدو په ارمان وی،چه څه رنګ  دخلقو د طرف نه  د ټول امت په قیادت به اصرارکیږي او امام مهدی  له طرف نه به انکارکیږي-

پینځمه خبره: دډیروروایتونو نه معلومیږي چه امام مهدي او د هغه کورنئ به  قید و بند دسختو تیریږي،لیکن د الله تعالی د طرف نه به د بیعت د پاره د غیبو نه الله مدد کوي،فرمائی:**لیس له عدد و ولا عدة ولا منعۃ**

شپږمه خبره:د امام مهدی د بیعت نه مخکښې به خلقو په نظر کښې د امام مهدي او د هغه د جماعت څه حیثیت نه وي،لیکن د بیعت نه پس به د ټولے دنیا د توجو بیت الله شریف باندے وي- او مکه مکرمه به د امام مهدي د حکومت نه د آزاد ولو د پاره د ټولے دنیا طاقتونه یو شي او مدینے طرف ته

به روان شي او هلته به فساد جوړ کړي او مکے مکرمے ته به روان شي،ليکن په لاره کښ د بيدا په مقام باندے به زمکه دوي دننه(خسف) کړي-

**سوال(۲۹):**په هردور کښې د امام مهدي دعویدار ډیر وي او په هر زمانه کښې دامام مهدي سره محبت کولو والا او د ده په لښکرکښې شریکیدو والا تعداد به هم کم نه وي،بلکه د هر دا ارمان وی چه د امام مهدي په لښکر کښې شریک شي،لیکن مسئله دا ده چه په هغه زمانه کښې به د حق او باطل پیژندرلو ګرانه وي،وس سوال دادے چه داسے به کوم یو علامت وي چه د هغے په وجه مونږ امام مهدي پیژنو چه کوم امام مهدي دے؟ او کوم لښکر د امام مهدي دے؟

جواب:مسدرک حاکم کښې حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روایت دے چه یو ځل نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره ناست وو ،دهغوي ﷺ په مخ مبارک باندے د خوشحالئ اثرات وو اودا خبره د سیرت په کتابونو کښې هم مشهوره ده چه کله به نبي کریم ﷺ خوشحاله وو نو د هغوي په مخ به د خوشحالئ د ظاهریدو اثرات وو او خوشحالي به د هغوي په مخ ښکاریده- په دے دغه وخت د هغوي ﷺ په مخه دبنو هاشم یو څو ځوانان تیر شول، دهغوي په لیدل سره پیغمبر ﷺ ډیر پریشانه شو او د هغوي د مخ رنګ ئی زیړ شو،نو مونږ هم د هغوي پریشاني محسوس کړه او مونږ تپوس وکړو اے دالله رسوله! څه وجه د چه وس ستاسوپه مخ دخفګان آثار ښکاري او دے نه مخکښې طبیعت شریف ډیر خوشحاله وو،نو هغوي وفرمائیل چه ځمونږ او ځمونږ د اهل بیتو د پاره الله تعالی رب العزت ددنیا په مقابله آخرت دنعمتونو ځائے ګرځولے دے- او په راتلونکی وخت کښې به اهل بیت قتل وغارت،ذلیل کول او رسوا کولو ښکار کیږي-او د یو ځائے نه بل ځائے ته شړل او د بے عزته کولو غمونه به ورته رسي-

لیکن په آخرئ زمانه کښې به د خراسان نه څه خلق راځي چه د حق او خیر یعني د خلافت دنظام د نافذ کولو مطالبه به کوي او دهغے د حصول د پاره به وسلے سره قتال (جهاد)کوي لیکن هغوي ته به دا حق نه ورکړے کیږي نو ددے دحاصلیدو دپاره به بیا راپاسي بیا به د دے دپاره جنګ کوي دا ځل به ورته حق ملاویږي،لیکن هغوي به دا حما نوسي یعني امام مهدي په حواله

کوي چه په پورا دنيا کښې به د عدل او انصاف نظام قائموي او د دنيا نه به ظلم زياتے او بے انصافي ختمه شي-

**وضاحت:**ددے حديث په رڼا کښې يو څو خبرئ معلومے شوے:

اوله خبره:چه امام مهدي به د اهل بيتو نه وي او اهل بيت چه څنګه په مخکښې زمانه د ظلم او زياتي ښکار وو نو په راتلونکي وخت کښې به هم دظلم او زياتي ښکار وي او په اهل بيتو کښې به امام مهدي خاص طور د ظلم او زياتي ښکار کيږي- يعني د امام مهدي د حقانيت علامت به دا وي چه هغه به د ظلم زياتي ښکار کيږي-

**دويمه خبره:** د حضرت علي رضي الله عنه ارشاد دے چه د امام مهدي په زمانه کښې به د هغه د اهل بيتو خلاف او د آل محمد خلاف هر طرف ته به خلق وليږلے شي او چرته چه هم د بنو هاشم سره تعلق لرونکي خلق ملاؤ شي،کړي وي او که ښځے وي،هغه ټول به نيسي او قتلوي به ئي،ددے دوران کښې چه امام مهدي ته پته ولګي نو چه ما پسے خلق راروان دي نو هغه به ځان سره يو بل ملګرے واخلي او اوبه تختي-ددے نه معلومه شوه چه امام مهدي پسے به د خپل وخت د حاکم د طرف نه دګرفتارئ وارنټ جاري کيږی-دغه شان د امام مهدي دوست او اهل بيت به هم د وخت حاکم د طرف نه د ظلم او زياتي د تکليفونو او د مصيبتونو ښکار کيږی به-

**دريمه خبره:**په دے دوران کښې به امام مهدي ته د ظالم بادشاه نه خلاصئ ملاؤ شي،ليکن د رهائئ نه مخکښې به د ده يو ملګري ته زهر ورکړئ شي او شهيد به کړئ شي- دامام مهدي د دے دوست په بعضے رواياتو کښې مبيض،بعضو کښې منصور، بعضوکښې النفس الذکيه او بعضو رواياتو کښې **اخ له فی دينه** په وئيلو سره ياد شوے دے-

**څلورمه خبره:**د امام مهدي اہل بيت اود هغه د دوست د قتل خبر به د هغه ملګرو کښې دبجلئ د پرق په شان خور شي،او دغه شان به د ظالم حاکم دظلم زياتي قيصئ هم خورئ شي،او دغه شان به د هر چا په ژبه د امام مهدي خبره وي - لکه څنګه چه په حديث کښې راغلي دي چه کله الله تعالی د چا سره محبت کوي ،نو جبرائيل عليه السلام ته ووائي چه زه د هغه سره محبت

کوم،هغه دا خبره فرشتو کښې عام کړي بيا فرشتے لاړے شي او د زمکے والا خلقو په زړونو کښې دا خبر واچوي،دغه شان بيا ټول خلق د هغه سره محبت کوي-هم دغه شان به د امام مهدي معامله هم وي-ان شاء الله-

د ريښتوني او دروغژن مهدي به بنيادي پينځه علامتونه وي چه کله هغه پورا شي ،نو هله به امام مهدي راځي هغه پينځه علامتونه:ذمانيه ،سياسيه ،تکوينيه مکانيه،، شخصيه او شرعيه-علامات شخصيه کښې به يو علامت مخکښې ذکر کړے شوے والاوي-

**سوال(۳۰):**دمهدي د راتلو نه مخکښ د کفر د سختو تیرو او د بیعت نه پس د اسلام رڼا باره کښ د قرآن او حدیث ارشادات بیان کړئ-

جواب:د حق په رڼا راتلو سره د باطل تیرئ ختمیږي لکه څنګه چه دالله فرمان دے: وقل جاء الحق و زهق الباطل ان الباطل کان زهقا- دامت اختلافات به د امام مهدي د راتلو سره ختم شي، او دغه شان به د اسلام رڼا په ټوله دنیا کښ خوره شي او د کفر تیرئ به ختمئ شي او داسلام د سحر راختو نه مخکښ د هغے رڼا به به افق باندے د سحر رڼا په شان خوریږي-

د اسلام د سحر خوریدو باره کښ څو آیاتونه:

۱.حضرت علي ؓ خپل ځوئ حضرت حسنؓ ولیدو او وفرمائیل چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم د حسن باره کښ فرمائیلی دي چه ان ابنی هذا سید چه ځما دا بچئ به سردار وي- او نورئي فرمائیل: الله تعالی به ډیر رز د د ه دپشت نه یو سړے پیدا کړي د هغه نوم به ستاسو د نبي په نوم وي او هغه به په اخلاقو کښ د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره اخلقو کښ مشابه وي، لیکن شکل وصورت کښ به د نبي کریم صلی الله علیه وسلم مشابه نه وي-

یو بل روایت کښ فرمائي چه کله د امام مهدي باره کښ غفلت شي او حق به ختم شوے وي نو په دغه زمانه کښ به هغه راځي- نور ئي ووفرمائیل:دامام مهدي د راتلو نه پس د زمکے آسمانونو ټول خلق به په خنداخوشحالئ ژوند تیروي-

**سوال(۳۱):** د نفس ذکیه نه څه مطلب دے؟

جواب:"نفس"اسم جنس دے, د ا د یو او د ډیرو دپاره ټولو د پاره دے او" ذکیه"نه مطلب ناحق قتل دے،لکه څنګه چه فرمائي:اقتلت نفسا ذکیۃ بغیر نفس آیا تاسو یو ناحق قتل وکړو بغیر د قتل د بدلے نه-

د امام مهدی د راتلو نه مخکښ دنیا کښ به ناحق قتلونه عام شي،لکه څنګه چه فرمائي:کما ملئت ظلما و جورا یعني د امام مهدي د راتلو نه مخکښ په ټوله دنیا کښ به ظلم او زیاتے وي- خاص طور مسلمانانو باندے به دټولے دنیا کفار حمله کوي: تتداعی علیکم الامم کما تداعی الاکلۃ علی قصعتها چه کفري ملکونه به په تاسوحمله کوي ،لکه څنګه چه ثرید خوړلو والا نور خلق ثرید خوړلو ته رابلي- په یو روایت کښ فرمائي:اذا قال الرجل الله الله،قتل چه یو سړے به صرف په الله الله وئیلو باندے قتل کیږي-

او په کتاب الفتن کښ د نفس ذکیه مطلب د امام مهدي دوست او د هغه مدد کونکي چه کله قتل کړي،نو په دے قتل باندے به د زمکے او آسمان خلق ژاړي-هم دغه شان به د امام مهدي نور انصار د هغه وخت ظالم بادشاه به رانیسي او جیلونو کښ به سزاګانې ورکوي-هم دغه وجه ده چه امام مهدي به د بیعت نه مخکښ د بیعت نه کولو د پاره دقتل دهمکي ورکولے شي-

# لشکر مہدی کے فضائل

امام مہدی کے انصار کے فضائل میں کئی احادیث منقول ہیں، جن میں چند ایک ذیل میں نقل کی جاتی ہیں:

1)اللہ تعالی امام مہدی کے مددگار ساتھیوں کو ہر تاریک غبار آلود سخت فتنوں سے نجات دیں گے، یہ حضرات سیاہ آندھیوں میں سے ہدایت کے روشن چراغ ہوں گے، جو انگاروں کو ہاتھوں میں پکڑنے والے ہوں گے۔

2)امام مہدی کے ساتھی ایسے لوگ ہوں گے، جو دن کے وقت شیر اور راتوں کو ترک الدنیا عبادت گزار ہوں گے۔

3)مقام ابراہیم اور رکن یمانی کے درمیان امام مہدی کے بیت کرنے والوں کی فضیلت تک نہ تو پہلے گزرے ہوئے لوگ پہنچیں گے اور نہ ہی بعد میں آنے والے لوگ ان کا مرتبہ پائیں گے۔

4)امام مہدی کے ظہور سے پہلے ان کے ان کے مددگاروں کو پتہ چلے گا، تو یہ حضرات روئے زمین کے اطراف اسے اس طرح آئیں گے، جیسے اونٹنی کا بچہ اپنی ماں کی محبت میں جلدی آتا ہے۔

5)امام مہدی کے بعض مددگار بادلوں میں سفر کر کے ان کے پاس پہنچیں گے، جن کا مرتبہ سب سے عظیم ہو گا۔

6)امام مہدی کے ساتھوں میں حجاز کے عمدہ خاندان اور خراسان کے ایسے حضرات ہوں گے، جو اللہ تعالی کو صحیح طور پر پہچانتے ہوں گے۔

7)امام مہدی کے مددگا اور ملحمۃ الکبریٰ میں سرکت کرنے والے روئے زمین میں سب سے بہترین لوگ ہوں گے۔

8)امام مہدی کے ساتھ شہید ہونے والے سب سے افضل شہداء ہوں گے اور ان کے ساتھ موجود مومنوں کو دوگنا اجر ملے گا۔

9)امام مہدی کے ساتھ شرکت کرنے والے حضرت عیسیٰ علیہ السلام کے ساتھ ہوں گے، جو تم سے (صحابہ کرام) افضل یا مرتبے میں تمھاری برابر ہوں گے۔

10)میری نسل سے امام مہدی آئیں گے، اگر تم اس کے زمانے کو پاؤ، تو اس کے ہو جاؤ تاکہ تم بھی راہ یاب ہو جاؤ۔